الرَّد الوافرُ على الأثيم الفَاجر

# د یارسول اللہ آواز






# الرَّد الوافرُ علیٰ الأثیم الفَاجر

یعنی

# د یارسول اللہ آواز

مؤلف


ابومحمد امین اللہ البشاوری

حفظہُ اللہُ تعالیٰ



مکتبہ محمدیہ

منگل مارکیٹ بیرون گنج پیښور

# کل حقوق محفوظ دی

کتاب ــــــــــ «د یارسول الله آواز» (نے مطلبه چغه)

مؤلف ــــــــ شیخ القرآن والحدیث ابو محمد امین الله البشاوری حفظه الله ورعاه

کمپوزنگ ــــ ابوزهیر سیف الله البشاوری (عفی الله عنه)

تاریخ ــــــــ (۱٤۳۱ هـ محرم الحرام ۲۹)

طبع دوم ــــ الموافق (۲۰۱۰/۱/۱۵ء)

ناشر

## مکتبه محمدیه

بیرون گنج گیټ منگل مارکیټ پیښور ښار

03018828402 ولی الله



اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، نَحْمَدُهٗ وَنَسْتَعِيْنُهٗ وَنَسْتَغْفِرُهٗ وَنَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا مِنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ فَلَامُضِلَّ لَهٗ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ط

اما بعد : الله رب العالمين خپل رسول محمد ﷺ تول امت ته راليږلے دے، دے دپاره چه امت كښې د الله په ذات او صفاتو يقين راشى او د ايمان او د توحيد په نور باندے رنګ شى، او د هر قسم شرك، كفر، بدعت او د ضلال نه بچ پاتے شى، او دا په هر نبى فرض وى چه هغهٔ به خپل امت ته د خير خبرے وړاندے كوى او د تولو غلطو او شرى خبرو نه به ئے منع كوى لكه دا خبره په صحيح حديث د مسلم (۱۲٦/۲) او ابن ماجه (رقم : ۳۹۵٦) كښې راغلے ده (اِنَّهٗ لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ قَبْلِيْ اِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَيْهِ اَنْ يَّدُلَّ اُمَّتَهٗ عَلٰى مَا يَعْلَمُهٗ خَيْراً لَهُمْ وَيُنْذِرَهُمْ مَا يَعْلَمُهٗ شَرًّا لَهُمْ...... الحديث) ـ

(زما نه مخکښې هيڅ نبي داسې نشته چه مگر په هغه باندې دا لازم وه چه خپل امت ته به هغه خير ښائی کوم چه ده ته معلوم دے اويروی به ئې د هغه شر نه چه دهٔ ته معلوم دے)۔

نو کهٔ يو سړے وائی چه دا مسئله د رسول الله ﷺ نه نقل شوے نهٔ ده، ليکن د خير خبره ده، نو عمل پرے مستحب دے، نو غلط وائی، ددے مذکوره حديث نه مخالف ده۔

نو هرهٔ مسئله باندے دليل د قرآن او د سنت صحيحه او د اجماع نه پيش کول فرض دی، کهٔ هغهٔ د عقيدے مسئله وی او کهٔ د احکامو سره تعلق لری۔

هرکله چه دا معلومه شوه نو دلته بعضے ناپوهانو يوه مسئله خلقو ته پيش کړے او پيش کوی ئې بلکه په مساجدو کښې ئې ليکی او څوك چه په هغهٔ مسئله رد کوی، نو هغوی ورته کافر اوبے دينه وائی، نو راځئ چه دا مسئله په قرآن او سنت کښې اُوګورو، ځکه چه د اختلاف د ختمولو دپاره الله تعالیٰ قرآن او احاديث راليږلی دی۔

الله تعالیٰ فرمائی: ﴿فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِیْ شَیْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَی اللّٰهِ

وَالرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ، ذٰلِكَ خَيْرٌ وَّاَحْسَنُ تَأْوِيْلًا﴾ (النساء/٥٩)

(كه ستاسو په څه خبره كښې جګړه راشي نو الله او د هغۀ رسول ته ئې واپس كړئ، كۀ چرې ايمان لرئ په الله او په ورځ روستنئ، دا كار ډير غوره او ښائسته انجام والا دے)

علامه ابن كثيرؒ ددے آيت لاندے ليكي : «هرڅوك چه فيصله د الله كتاب او د رسول الله ﷺ سنت ته نۀ پيش كوي نو هغۀ كافر دے». (تفسير ابن كثير ٥١٨/١)

او هغۀ مسئله دا ده چه آيا «يامحمد» او «يارسول الله» وئيل د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو يا د وړاندے (جدا) ځائے نه غائبانه آواز كول جائز دي او كۀ نۀ ؟ ددے مسئلے تحقيق تاسو دلته اُوګورئ او بيا د ځان سره انصاف اُوكړئ، او دا اُووايئ چه «اَللّٰهُمَّ اَسْتَهْدِيْكَ لِاَرْشَدِ اَمْرِىْ»

(اے الله ! زۀ تا نه د ډير هدايت والا خبره غواړم).

او په اخلاص سره داسے اُووايئ :

﴿ اِهْدِنَا الصِّراطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴾.

(اے الله ! ما ته نيغه لاره اوښايه !).

او هغۀ اوګده دعاء اولوله كومه به چه رسول الله ﷺ په

تهجدو کښې لوستله :

(اَللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرَائِيْلَ وَمِيْكَائِيْلَ. عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ) تر آخر پورے۔ نو الله پاك به حق درنصيب کړی، هر طرف ته چه وی۔

او ددے رسالے باعث په مونږ باندے ډيرعلماء وو او مولوی اسد الله ننګرهاری ما ته يوه رسالة راوړله چه د هغې نوم «احسن المآرب» دے او په هغې کښې ئے غير الله ته چغه وهل جائز کړی دی، او هر غائب ته آواز کول ئے حلال ګنړلی دی چه د هغۀ رسالے نه زمونږ ګرد ونواح ډيرو مبتدعينو استدلالات کول ځکه د دوی په نزد د شاميّ عبارت د قرآن او حديث نه زيات اهميت لری، شاميّ څۀ چه هره توره کرخه د دوی په نزد معتبر دليل دے، تردے چه يو په نوم مُلا ما پسے د ډيرو کتابونو حوالے راوليږلے چه هغۀ کتابونه هغۀ ليدلی هم نۀ دی، ليکن د دغه مذکوره رسالے نه ئے ليکل کړی وو۔

او ددے مثال حديث کښې دے : (اَلْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَیْ زُوْرٍ) (بخاری ٧٨٥/٢) مسلم (٢٠٦/٢) ترمذی (٢)

(چالـه چه يو صفت نهٔ وی ورکړے شوے او هغهٔ ئے څان کښې ښکاره کوی، دا داسے دے لکه د دروغو دوه جامے ئے چه اغوستی وی)

نو زهٔ اُوس – ان شاء الله – پدے رساله سره جواب ورکوم ټول اهل بدعت تـه او هغوی ډے دا اُوګوری او دا رسالـه يـواځے دا مسئـله نهٔ ذکر کوی بلکه دا مشتمله ده په ډيرو قـواعـدو او اصولو او دلائل شرعيو باندے نو – ان شاء الله– چـه زيـاتـه مـفيـده بـه وی، څـکه چه ما په خوب کښې ددے کسانو رغړول او ذليـل کـول ليدلی دی، پس د استخارے کولو نه۔

دے رسـالـه کـښې بـه د حق دلائل مخکښې ذکر کيـږی تـفـصيلًا او بيـا بـه د بـاطـل پرستو څـه دليلونـه او د هغے صحيح جوابونه ذکر کيږی – ان شاء الله۔

وما توفيقی الا بالله عليه توكلت واليه انيب۔

(ثلاثاء صفر المظفر ۲۰ / ۱٤۱۲ هجری)

OOOOOOO

# د حق پرست دليلونه او تائيدات

هرهٔ مسئله قرآن او سنت کښې شته نو اول د هغې نه دليل ذکر کول ضروري وی او قرآن او سنت ناقص نهٔ دی لکه څرنګ چه باطل پرست دا غلط ګمان لری :

**اول عظيم دليل** د قرآن کريم نه :

(قال الله تعالىٰ فی قوله الصادق :

﴿لَا تَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ط قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ يَتَسَلَّلُوْنَ مِنْكُمْ لِوَاذًا ج فَلْيَحْذَرِالَّذِيْنَ يُخالِفُوْنَ عَنْ اَمْرِهٖٓ اَنْ تُصِيْبَهُمْ فِتْنَةٌ اَوْ يُصِيْبَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾

(سورة النور آيت ٦٣ پاره ١٨)

(الله رب العزت فرمائي: مهٔ ګرځوئ آواز رسول الله ته په خپل مينځ کښې داسې لکه تاسو چه يو بل ته آواز کوئ، الله هغهٔ کسان پيژني چه ستاسو نه پټيږی، پس اُوډې يريږی هغهٔ کسان چه د رسول الله ﷺ د امر او حکم خلاف کوی چه يا خو به پرې فتنه راشي او يا به ورسيږی

دوی ته دردناك عذاب)

دا دآیت حاصل دا دے۔ ددے آیتِ کریمه په تفسیر کښ د حق پرست علماؤ تفسیرونه اُوګوره !

علامه ابن کثیرؒ (۳۰۶/۳) کښ فرمائی :

(قَالَ الضَّحَّاكُ : كَانُوا يَقُولُونَ يَا مُحَمَّدُ يَا اَبَاالْقَاسِمِ فَنَهَاهُمُ اللّٰه عَزَّ وَجَلَّ عَنْ ذٰلِكَ اِعْظَاماً لِلنَّبِيِّ ﷺ قَالَ فَقُوْلُوا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ، يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَهٰكَذَا قَالَ مُجَاهِدٌ وَسَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَقَالَ قَتَادَةُ : اَمَرَ اللّٰهُ اَنْ يُهَابَ نَبِيُّهٗ ﷺ وَاَنْ يُبَجَّلَ وَاَنْ يُعَظَّمَ وَاَنْ يُسَوَّدَ)

(ضحاكؒ وئیلی چه صحابه کرامو به رسول الله ﷺ ته یامحمد او یا ابا القاسم وئیلو نو الله تعالیٰ ددے نه منع کړل دپاره د تعظیم د نبی ﷺ او ورته ئے اُوفرمایل : چه داسے وایئ یا نبی الله او یا رسول الله۔ دغه شان خبره مجاهد او سعید بن جبیر کړیده او قتاده وئیلی دی چه الله تعالیٰ حکم فرمائیلے دے چه د هغه د نبی د حکم نه هیبت اُوکړے شی او د هغه تعظیم او اجلال او اکرام اُو کړے شی)۔

حاصل دا دے چه دے آیت کښ الله پاك د (یا محمد) د وئیلو نه منع کړے ده، ځکه دا د نبی ﷺ بے ادبی ده، او د

نبی علیه السلام مشروع تعظیم کول پکار دی، دا یو تفسیر دے پدے آیت کښې نو چه قرآنِ د (یامحمد) نه منع اُوکړه نو بیا کوم کس دے چه هغهٔ پدے کښې اجازت ورکړی او کهٔ نهٔ دا آیتونه ستاسو په نزد هیڅ حقیقت نهٔ لری یا منسوخ شوی دی، لکه په هر ځائے کښې دا خلق وائی چه دا منسوخ شوی دی او دا منسوخ دی، دارنګه د قرآن په مقابله کښې د بل کتاب هیڅ حیثیت نهٔ شته، چه انسان هغهٔ پیش کړی او دا به مفصله روستو راشی۔
دارنګه اُوګوره تفسیر قرطبی ١٢/٣٢٢)
(یُرِیْدُ، یُصِیْحُ مِنْ بَعِیْدٍ یَا اَبَا الْقَاسِمِ بَلْ عَظِّمُوْهُ کَمَا قَالَ فِی الْحُجُرَاتِ) ۔(یعنی مراد د الله تعالیٰ دا دے چه د وړاندے نه چغے وهل مهٔ کوئ بلکه د رسول الله ﷺ تعظیم اُوکړئ)۔
دارنګه تفسیر علاء الدین الخازن (٣/٣٦٥) کښې دی :
(وَقِیْلَ مَعْنَاهُ لَاتَدْعُوْهُ بِاسْمِهٖ کَمَا یَدْعُوْ بَعْضُکُمْ بَعْضاً یَا مُحَمَّدُ، یَا عَبْدَ اللّٰهِ وَلٰکِنْ فَخِّمُوْهُ وَعَظِّمُوْهُ وَشَرِّفُوْهُ الخ )۔
(معنیٰ دا ده چه په نوم باندے رسول الله ﷺ ته آواز مه کوئ لکه یو بل ته چه آواز کوی داسے مهٔ وایئ : یا محمد یا عبد الله بلکه عزت او عظمت د رسول الله ﷺ اُوساتئ)

علامه محمد بن احمد جزی الکلبی په کتاب التسهیل (۱/۱۹۳) د سورة المائدې د آیت ﴿ إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ يَا عِيسَى بْنُ مَرْيَمَ ﴾ لاندې لیکلي دي :

«نِدَاؤُهُمْ لَهُ بِاسْمِهِ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّهُمْ لَمْ يَكُونُوا يُعَظِّمُونَهُ كَتَعْظِيمِ الْمُسْلِمِينَ لِمُحَمَّدٍ ﷺ فَإِنَّهُمْ كَانُوا لَا يُنَادُونَهُ بِاسْمِهِ» .

مطلب دا دې چه حواریون د عیسی علیه السلام نوم مبارك واخستو په آواز کولو کښې دا دلیل دې پدې چه دوی به د خپل نبي دومره اکرام او ادب نهٔ کولو لکه چه مسلمانانو او صحابه کرامو د محمد ﷺ ادب کولو ځکه د ټولو مسلمانانو صحابه کرامو طریقه دا وه چه رسول الله ﷺ ته به دوی په نوم آواز هیچرې نهٔ کولو، دا دلیل دې پدې چه د ټولو صحابه کرامو اجماع ده پدې چه په «یا محمد» سره آواز کول د محمد ﷺ بې ادبي ده او بې ادب شخص له به الله پاك سخته سزا ورکوي، او کهٔ عقیده ورسره هم غلطه لري نو بیا خو هلاکت در هلاکت دې. دا عبارت تفصیل سره مطالعه کړه.

دارنګه اوګوره تسهیل (۳/۷۳) :

«وَالْقَوْلُ الثَّانِيْ اَنَّ الْمَعْنَى لَاتَدْعُوا الرَّسُوْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ بِاسْمِهٖ»

(يعنی رسول الله ﷺ ته په نوم آواز مهٔ کوئ)

دارنګه العلامه المفسر الشوکانیؒ فرمائی :

«وَاَخْرَجَ عَبْدُ الْغَنِيِّ بْنِ سعيد فی تفسيره وابونعيم فی الدلائل عَنْهُ اَيْضاً اَیْ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ فِی الآيَةِ : لَاتَصِيْحُوْا بِهٖ مِنْ بَعِيْدٍ يَاَ بَا الْقَاسِمِ وَلٰكِنْ كَمَا قَالَ اللّٰهُ فِی الْحُجُرَاتِ»۔

(د سعيد بن جبيرؒ او د نورو مفسرينو نه نقل دی چه رسول الله ﷺ ته په نوم د (يا محمد) سره آواز مهٔ کوئ، او دارنګه د وړاندے نه ورته چغے مهٔ وهئ)۔

دارنګه دا معنیٰ پدے لاندينو تفاسيرو کښ اُوګورئ :
ايسر التفاسير (۳/۲۵۹) المدارك (۳/۳۶۵) علی هامش الخازن، روح المعانی د علامه آلوسیؒ (۱۸/۲۲۵) قال :

وَاَخْرَجَ ابْنُ اَبِیْ حَاتِمٍ وَابْنُ مَرْدَوَيْهِ وَاَبُوْنُعَيْمٍ فِی الدَّلَائِلِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانُوْا يَقُوْلُوْنَ يَا مُحَمَّدُ ، يَا اَبَا الْقَاسِمِ فَنَهَاهُمُ اللّٰهُ عَنْ ذٰلِكَ بِقَوْلِهٖ سُبْحَانَهٗ :لَاتَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ الآيَة اِعْظَاماً لِلنَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَقَالُوْا يَا نَبِیَّ اللّٰهِ وَيَارَسُوْلَ اللّٰهِ، وَرُوِیَ نَحْوُ هٰذَا عَنْ قَتَّادَةَ وَالْحَسَنِ وَسَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ وَمُجَاهِدٍ

وَفِیْ اَحْکَامِ الْقُرْآنِ لِلسُّیُوْطِیْ : اِنَّ فِیْ هٰذَا النَّهْیِ تَحْرِیْمَ نِدَائِهٖ ﷺ بِاسْمِهٖ وَالظَّاهِرُ اسْتِمْرَارُ ذٰلِكَ بَعْدَ وَفَاتِهٖ اِلَی الْآنَ ـ انتهیٰ)۔

د عبارت مقصد دا دے چه ابن عباس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ ته په نوم آواز کول حرام دی او ظاهره خبره دا ده چه دا اُوس هم حرام دی، منسوخ شوی نهٔ دی، نو اُوس دِے د ((یامحمد)) ویونکے او لیکونکے سوچ اُوکړی چه دا په کوم دلیل مونږ جائز کړی دی، آیا په تاوئیلی، ماوئیلی باندے او کهٔ نهٔ څهٔ حق دلیل هم شته ؟ او کهٔ نهٔ دوی د عبد الله بن عباس رئیس المفسرین او حسن او قتاده او سعید بن جبیر رحمهم الله نه ښهٔ پوهیږی چه دا لوئی علماء دی۔

دارنګه اُوګوره لاندینی تفاسیر اُوګوره :

المظهری (٥٧٢/٦، تفسیر اضواء البیان للشنقیطی (٢٥١/٦، صفوة التفاسیر (٣٥١/٣) تفسیر الطبری (١٣٥/١٨) البحر المحیط (٤٧٦/٦، الکبیر (٤٠/٢٥) تفسیر جلالین (٣٠٢) معارف القرآن (٤٥٥/٦)

((لَا تَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بِاَنْ تَقُوْلُوْا یَا مُحَمَّدُ الخ)).

وَاَيضاً قَالَ الصَّاوِيُّ عَلٰى هَامِشِ جَلَالَيْن ص (١٠):
لَاتَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ اَيْ نِدَاءَهٗ بِمَعْنٰى لَاتُنَادُوْهُ بِاسْمِهٖ فَتَقُوْلُوا يَا مُحَمَّدُ وَلَا بِكُنْيَتِهٖ فَتَقُوْلُوا يَا اَبَا الْقَاسِمِ وَاسْتُفِيْدَ مِنَ الآيَةِ اَنَّهٗ لَايَجُوْزُ نِدَاءُ النَّبِيِّ ﷺ بِغَيْرِ مَا يُفِيْدُ التَّعْظِيْمَ لَا فِيْ حَيَاتِهٖ وَلَابَعْدَ وَفَاتِهٖ).

(تفسير الطبرى (١٨/١٣٤) عن مجاهد لا تقولوا يا محمد، تفسير جامع البيان (٢/٨١) البيضاوى (٢/١٣٦) الكشاف (٣/٧٩) تفسير البحر المحيط (٦/٣٧٥) زاد المسير (٥/٣٧٨) تفسير الثعالبى (٣/١٢٩) تفسير النهر الماد (٢/٥٥٨)

دے ټولو مفسرينو د «يامحمد» په وئيلو رد کړيدے۔ نو څوك دے چه هغهٔ ددے عمل نه بنهٔ پوهيږی او څوك دے د صحابه کرامؓ نه بنهٔ عمل کونکے په قرآن او حديثو او کوم روايتو نه چه خلق ذکر کوی نو هغهٔ اکثرضعيف روايات دی يا مؤول دی لکه روستو به راشی ان شاء الله – څکه صحابه کرامؓ د رسول الله ﷺ د حقوقو او آدابو بنهٔ پيژندونکی وو۔

**دويم دليل** : د قرآن کريم نه پدے مسئله باندے۔
الله تعالیٰ فرمائی :

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾۔

(سورة الحجرات آیت : ۵، پاره ۲۶)

ترجمه : هغهٔ کسان چه آوازونه کوی تا ته اے زما نبی ! اخوا د حجرو نه اود دیوالونو نه، اکثر د دوی بے عقله دی)۔

پس د آیتِ کریمه نه واضحه شوه چه څوك رسول الله ﷺ ته چغے وهی، پس د هغے نه چه هغهٔ د دنیا نه لاړو او وفات شو نو دا بے عقله دی، غویا یا خر دے، نو څوك چه د «یامحمد، او یارسول الله» چغے وهی، غویان او خرهٔ دی، بلکه د هغوی نه پسے اخوا ته دی، اکثر دا قسم خلق مشرکان هم وی۔

ددے آیت په شانِ نزول کښ د مفسرینو اقوال اُوګوره چه یقین ته دا خبره کوزه شی۔ (ان اراد الله بك خیراً)

او د قرآن پدے بهترینو الفاظو چه ډیر عظمت والا دی لږ سوچ هم اوکړه اے مسلمانه چه قرآن کښ یوه مسئله شته نو د بل چا دلیل ته څهٔ حاجت دے!

لیکن مونږ وایو چه دا خبره زمونږ یواځے نهٔ ده د ټولو صحیح مسلمانانو او علماء کرامو او مشائخ عظامو ده۔

اُوکوره۔

**١ – اول مشهور تفسير د علامه ابن کثير (٤/٢٠٨) :**

(قَالَ : وَقَدْ ذُكِرَ اَنَّهَا نَزَلَتْ فِي الْاَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ التَّمِيْمِيِّ فِيْمَا اَوْرَدَهٗ غَيْرُ وَاحِدٍ، قَالَ الْاِمَامُ اَحْمَدُ فِيْ مُسْنَدِهٖ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ فَذَكَرَ السَّنَدَ عَنِ الْاَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ اَنَّهٗ نَادىٰ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، يَا مُحَمَّدُ، وَفِيْ رِوَايَةٍ : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَمْ يُجِبْهُ، فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ، اِنَّ حَمْدِيْ لَزَيْنٌ وَاِنَّ ذَمِّيْ لَشَيْنٌ، فَقَالَ ذٰلِكَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ).

(دا آيت نازل شوے دے په باره د اقرع بن حابس ﷺ کښې چه دهٔ رسول الله ﷺ ته آواز کړے وو په «يامحمد» او په بل روايت کښې راځي چه په «يارسول الله» سره او هغهٔ په کوټه کښې وو، نو رسول الله ﷺ جواب ورنکړو، بيا دهٔ اُووئيل : زهٔ چه د چا صفت اُوکړم، هغهٔ ډولی کيږی او د چا بدی چه بيان کړم هغهٔ عيب والا کرځي، نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل چه دا صفت خو د الله دے۔

دے حديث نه صاف دوه خبرے معلومے شوے يوه دا چه «يامحمد» لوستل بے ادبی ده او «يارسول الله» وئيل په حالت د حضور کښې جائز دی، لکه دا ب روستو ذکر شی،

نو دا آیت په رد د «یامحمد» کښې مطلق او په رد د غائبانه «یارسول الله» وئیلو کښې پوره دلیل دے، سره ددے حدیث نه لږ سوچ اوکړه اے مسلمانه !۔

**دویم شان نزول :**

(جَاءَ أُنَاسٌ فَجَعَلُوا يُنَادُونَهُ وَهُوَ فِي حُجْرَتِهِ يَامُحَمَّدُ، يَا مُحَمَّدُ" فَأَنْزَلَ اللّٰهُ هٰذِهِ الآيَةَ).

(ابن کثیرؒ ٤/ ٢٠٨)

(څهٔ کسان راغلل او «یامحمد» چغے ئے وهلے او رسول الله ﷺ په کوټه کښې وو نو الله پاك دا آیت نازل کړو چه نبی ﷺ ته غائبانه چغے وهل دے عقله خلقو کار دے، دارنګه اوګوره :

الخازن (١٦٩/٤) المدارك (١٦٨/٤) التسهيل (٥٨/٤) فتح القدير (٦١/٦٠/٥) القرطبى (٣٠٩/١٦) روح المعانى (١٤٣/١٣٩/٢٦) تفسير القاسمى (٢٤٣/١٢) و(١٠٨/١٥) تفسير النهر الماد على هامشه (٤٧٥/٦) تفسير الجلالين (٤٢٧) الصاوى (٧) حاشية المراغى (١٢٢/٢٦) تفسير البحر المحيط (١٠٦/٨) تفسير زاد المسير (١٧٨/٧) تفسير الثعالبى (١٨٦/٤) تفسير البرهان فى مشكلات القرآن ص (٤٤٣) تفسير اضواء البيان للشنقيطى (٦١٥/٧) تفسير النهر الماد (٩٧٩/٣)

دا تفاسیر په ښهٔ سوچ سره اُوګوره نو علم کښې به دِے اضافه پیدا شی، او الله پاك به دِے په صحیح لاره روان کړی که د هدایت په نیت دِے اُوکتل۔

OOOOOOO

# هغه احادیث
# چه منع کونکی دی ددے بدے کلمے نه

۱ – **اول حدیث :** (عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ : كُنْتُ قَائِمًا عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَجَاءَ حِبْرٌ مِنْ اَحْبَارِ الْيَهُوْدِ فَقَالَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُحَمَّدُ فَدَفَعْتُهُ دَفْعَةً كَادَ يُصْرَعُ مِنْهَا، فَقَالَ : لِمَ تَدْفَعُنِيْ ؟ فَقُلْتُ : اَلَا تَقُوْلُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ! فَقَالَ الْيَهُوْدِيُّ : اِنَّمَا نَدْعُوْهُ بِاسْمِهِ الَّذِيْ سَمَّاهُ بِهٖ اَهْلُهٗ– الحديث)

(صحيح مسلم ١٤٦/١) كتاب الحيض باب بيان صفة منى الرجل والمرأة وان الولد مخلوق من مائيهما)

(ثوبان ﷺ فرمائی : زۀ د رسول الله ﷺ سره ولاړ اُوم پدے کښ د یهودیانو د ملایانو نه یو مُلا راغے وے وئیل: (السلام علیك یا محمد) نو ثوبان ﷺ فرمائی: ما دیکه کړو په داسے دیکے سره چه نزدے وه چه غورځیدلے وے د هغے نه نو دے یهودی اُووئیل چه ولے ما دیکه کوے؟ نو ما ورته اُووئیل چه یارسول الله ولہ نۀ وائے چه یا محمد وائے، نو یهودی اُووئیل چه مونږ یهود ورته هغۀ نوم اخلو کوم

چه ورله مور او پلار ایخودلی دی – حدیث اوږد دی ماترې بعضِ ټکړه راواخسته د خپل مقصد دپاره۔

ددې حدیث **فوائد** او مسئلې په سوچ سره اُوګوره :

۱- **اوله** : دا مسئله معلومه شوه چه په یا محمد دومره خفګان پکار دې لکه د صحابه کرامؓ په شان چه هغوی به پدې کلمه دومره غصه کیدل چه سړې به ئې پدې کلمه قبیحه دومره دَرباوه چه په زمکه به ئې راویشتو۔

۲- **دویمه** ترې دا معلوم شوه چه دا خبره په صحابه کرامؓ کښې مشهوره ده چه «یامحمد» وئیل جائز نهٔ دی ځکه ثوبان ﷺ یهودی ته دا تعلیم ورکړو۔

۳- **دریمه** ترې دا معلومه شوه چه ثوبان ﷺ د رسول الله ﷺ په مخ کښې ددې کلمې قبیحې نه منع اُوکړه او رسول الله ﷺ ثوبان ﷺ ته هیڅ قسم زورنه ورنکړه سره ددې چه ثوبان ﷺ سختې اُوکړه ددې کافر سره، نو دا عظیم دلیل شو پدې خبره چه دا د دین لویه مسئله ده چه څوك دا الفاظ استعمالوی نو د هغهٔ سره دا عمل پکار دې۔

٤- څلورمه ترې دا ښکاره معلومه شوه چه د «یامحمد» لفظ استعمالول د یهودو کار دې، دلیل پرې دا

لفظ دے (اِنَّمَا نَدْعُوْهُ بِاسْمِهِ الَّذِیْ سَمَّاهُ بِهٖ اَهْلُهٗ) چه زمونږ یهودو دا طریقه ده چه دے نبی ته به مونږ په خپل نوم آواز کوو نو اُوس سوچ اُوکړه چه د یهودو د اعمالو او اخلاقو نه مونږ او تاسو رسول الله ﷺ نۀ یو منع کړی ؟ولے نۀ، (لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ کَانَ قَبْلَکُمْ حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ) (اخرجه البخاری والترمذی، مشکوة ۱/۳۰)

تاسو به د یهودو او نصاریٰ د طریقو تابعداری شروع کړی او د هغوی سره به برابر شی لکه یوه چپړه چه د بلے چپړے سره برابریږی، دا فرمان د رسول الله ﷺ صادق او رشتینی دے، چه دے امت په هرڅه کښې د یهودو اتباع اُوکړه تردے چه بے ادبی کښې هم اُوکړه، او د خپل نبی نوم ئے واخستو چه د هغے نه منع راغلے ده۔ والله المستعان۔

دا حدیث په بل سند سره په مسند ابوعوانه (۱/۲۹۳) کښې هم اُوګوره په مذکوره الفاظو باندے۔ د ثوبان ﷺ نه نقل شوے دے۔

OOOOOOO

**۲- دویم حدیث:**

چه هغه مخکښې په دویم دلیل د قرآن کښې ذکر شوے دے اشارةً اوس تفصیل د هغې واوره!۔

قَالَ الْإِمَامُ اَحْمَدُ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، حَدَّثَنَا وُهِيْبٌ، حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنِ الْاَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ اَنَّهٗ نَادٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ وَفِيْ رِوَايَةٍ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَمْ يُجِبْهُ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ حَمْدِيْ لَزَيْنٌ وَاِنَّ ذَمِّيْ لَشَيْنٌ فَقَالَ ذٰلِكَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ).

(مسند احمد ج٦/٣٩٤/ و٣/٤٨٨) ورواه الترمذی مختصراً (٢/١٦٢) كذا فی تفسير ابن كثير (٢/٢٠٨)

(اقرع بن حابس ﷺ رسول الله ﷺ ته آواز اوکړو په «یا محمد، یا محمد» سره، او په روایت دِ ترمذی کښې دی: «یارسول الله»، او رسول الله ﷺ په حجره کښې وو او هرکله چه بهر راغے نو دے سړی ورته اُووئیل چه زهٔ د چا صفت اُوکړم، ښائسته کیږی او چه د چا بدی بیان کړم هغهٔ بد رنګ کیږی، رسول الله ﷺ اُوفرمایل: دا صفت والا ذات خو الله عزوجل دے)، او دا صحیح حدیث دے۔

صحیح الترمذی للالبانیؒ (١٠٧/٣)

نو الله پاك دا آيت نازل كړو چه كوم كسان رسول الله ﷺ ته په «يامحمد» سره يا په «يارسول الله» سره غائبانه چغې وهي، هغۀ بې عقله او جاهلان دي، ددې حديث نه دا مسئله معلومه شوه چه «يامحمد» ځو بې ادبي ده كۀ رسول الله ﷺ حاضر وي او كۀ په پرده كښې وي.

«يارسول الله» وئيل هم ناروا دي كۀ رسول الله ﷺ غائب وي او اخوا د ديوال وغيره نه وي يعني چه انسان هغۀ ته چغې وهي او كۀ مخامخ ورته يا نبي الله، يا رسول الله" په ادب او آرام سره اُووائي نو جائز ده بلكه مامور به ده.

۳- **دريم دليل** : حديث د تشهد دې چه هغۀ د ابن مسعود ﷺ نه نقل شوې دې، پدې طريقه :

(عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ التَّشَهُّدَ كَفِّيْ بَيْنَ كَفَّيْهِ كَمَا يُعَلِّمُنِي السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْآنِ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ الخ

(اخرجه الامام احمد فى مسنده ۱/ ٤١٤ بهذا اللفظ والبخارى ٤/ ١٧٦) ومسلم (٢/ ١٤) وابن ابى شيبة فى المصنف (١/ ١١٤).

عبد الله بن مسعودؓ فرمائی: چه رسول الله ﷺ ما ته تشهد یعنی التحیات لله داسې را اُوخودله لکه یو سورة د قرآن کریم چه به ئې څرنګ راخودلو یعنی ډیر اهتمام سره ئې راته دا تعلیم راکړو چه داسې اُووایه «التحیات لله والصلوة والطیبات السلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته» تر آخره۔

دا حدیث په مسند ابی عوانه کښې (٢٢٩/٢٢٨/٢ او بخاری ٤٧/١) او دغه شان په السنن الکبریٰ للبیهقی (١٣٨/٢) کښې هم دې۔

لیکن دا الفاظ ورسره په صحیح سندونو سره زیات کړې شوی دی، (وَهُوَ بَیْنَ اَظْهُرِنَا فَلَمَّا قُبِضَ قُلْنَا اَلسَّلَامُ عَلَی النَّبِیِّ) (یعنی مونږ به داسې الفاظ وئیل په تشهد کښې السلام علیك ایها النبی کله چه رسول الله ﷺ ژوندے وو او کله چه وفات شو نو مونږ صحابه کرامؓ به په تشهد کښې داسې وئیل: (السلام علی النبی) یعنی خطاب به مو رسول الله ﷺ ته نهٔ کولو، او دا خبره ښکاره ده چه صحابه کرامؓ د ځان نه دین نهٔ دې جوړ کړې بلکه دا خبره به هغوی ضرور د رسول الله ﷺ نه اَوریدلی وی۔

او پــه دے خبـره دویـم قـوی دلیـل هـغـه المصنف لعبد الرزاق (۲/٤۰۲) راوړیـدے، دارنـګه کنزِ العمال ذکر کړیدے (٤/٤٦٦٨) : قَـالَ عَبۡـدُ الرَّزَّاقِ اَخۡبَرَنَا ابۡنُ جُرَيۡجٍ اَخۡبَرَنِیۡ عَطَاءٌ اَنَّ الـصَّحَابَةَ كَانُوۡا يَقُوۡلُوۡنَ وَالنَّبِیُّ ﷺ حَیٌّ اَلسَّلَامُ عَلَيۡكَ اَيُّهَا النَّبِیُّ فَلَمَّا مَاتَ قَالُوۡا اَلسَّلَامُ عَلَى النَّبِیِّ).

وهـذا اسـنـاد صـحـیـح صـحـحه الحافظ ابن حجر فی فتح الباری (۲/٣١٤) وغیره.

(عـطـاء رحـمـه الله فـرمـائـی: صحابه کرامو رضی الله عنهم به «السلام عـلـيك ايها الـنبی» د رسـول الله ﷺ پـه ژوند کښ وئیلو او کـله چه هغۀ وفات شو نو هغوی به داسے الفاظ فرمایل: «السلام علی النبی».

او دا د ټـولـو صـحـابـهِ کـرامـو رضی الله عنهم عـمـل او ګویا کښ دِ ټولو صـحـابـو دا احسـاس وو چه ددے لفظ نه څوك غلطه فائده وانـخـلـی، لـکـه ددے زمـانـے جـاهـلان د هـرے کـرخے نـه استدلالات کوی صحیح او غلط دلیل نۀ ګوری خو کتاب ترے ډك کوی.

دارنـګـه امـام مـالك په الموطأ (۱/۷۳) کښ د ابن عمر رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه هغه به داسے الفاظ لوستل:

(اَنَّـهٗ كَـانَ يَتَشَهَّـدُ فَيَقُـوْلُ اَلسَّلَامُ عَـلَى النَّبِيِّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ) باسناد صحيح على شرط الشيخين)

دارنګه المصنف لعبد الرزاق کښې د ابن الزبير او د ابن عباس روايت هم اوګوره (۲/۲۰۳) چه هغوی به هم داسې الفاظ لوستل : السلام على النبى ورحمة الله وبركاته الخ۔ دا روايت د طحاوی په کتاب معانى الآثار کښې هم اُوګوره (۱/۱۸۰) ليکن مختصر دے۔

دارنګه اُوګوره روايت د عائشه رضى الله عنها په المصنف لابن ابى شيبة (۱/۱۱۵) او په مسند السراج (۹/۱/۲) او الملخص فى الفوائد (۱۱/۵۵) بسندين صحيحين عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تُعَلِّمُهُمُ التَّشَهُّدَ فِى الصَّلَاةِ اَلسَّلَامُ عَلَى النَّبِيِّ)

عائشې رضى الله عنها بـه دا قسم تشهد شاګردانو او تابعينو ته خودلو «السلام على النبى»۔

(وَلَاشَكَّ اَنَّ عُدُوْلَ الصَّحَابَةِ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُمْ مِنْ لَفْظِ الْخِطَابِ عَلَيْكَ اِلَى لَفْظِ الْغَيْبَةِ (عَلَى النَّبِيِّ) اِنَّمَا بِتَوْقِيْفٍ مِنَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِاَنَّهٗ اَمْرٌ تَعَبُّدِيٌّ لَا مَجَالَ لِلرَّأْىِ وَالْاِجْتِهَادِ فِيْهِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ كَذَا ذَكَرَ هٰذِهِ الْفَوَائِدَ مَعَ شَيْءٍ يَسِيْرٍ مِنَّا الْعَلَّامة

المُحقق الالباني في كتابه القيم ارواء الغليل۲/۲۷) رقم الحديث (۳۲۱) وكذا في صفة الصلوة له ص (۱۷۱).

حاصل دا دے چه په تشهد کښې دوه قسمه الفاظ نقل دی په صحیح روایاتو کښې اول: (السلام علیك ایها النبی) اودویم (السلام علی النبی) لیکن دا الفاظ پس د وفات د رسول الله ﷺ نه صحابه کرامو ذکر کول، ددے دویم روایت فائده خو معلومه ده چه صحابه کرامؓ د شرك د بندولو دپاره حتی الوسع کوشش کولو او د عوام الناس د اَوهامو د ختمولو دپاره ئے الفاظ موهمه ختمول۔

بلکه دا چه هغوی غائب ته آواز نهٔ کولو په «یارسول الله» او نهٔ په «یامحمد» سره او هرچه اول روایت دے نو هغهٔ هم صحیح دے لیکن دا استدلال ترے کول چه غائب ته آواز کول جائز دے، غلط استدلال دے۔

اُوګوره (فضل الله الصمد فی توضیح الادب المفرد ٢/٤٥٢/٤٥٥).

هغه داسے جواب کریدے چه دا امر تعبدی دے لکه څنګه چه مونږ په قرآن کښې یا فرعون او یا هامان واینو نو زمونږ خطاب مقصود نهٔ دے بلکه د الله تعالیٰ حکم دے نو

ځکه ئے مونږ استعمالوو۔ دویم دا چه دا خطاب حکائی دے حکایت دے د نبی ﷺ د وینا نه چه هغه داسے وئیلی دی نو مونږه ئے هم دغسے وایو او خطاب پکښ مقصود نهٔ دے۔ دریم دا چه دا د نبی ﷺ پورے خاص دے۔ پدے کښ قیاس نهٔ جاری کیږی۔ لکه دا خبره حافظ ابن حجر په فتح الباری (۱۱/۴۸) کښ ثابته کړیده۔

کـمـا حقق ذلك فضل الله فی شرح الادب المفرد (۲/۴۵۲) وکـذلك فـی البـراهیـن القـاطـعة (۲۲۰) لـخلیل احـمـد السهارنفوری)

دارنګه ملا علی القاریؒ فرمائی:

وَبِـهٖ يَـظْهَـرُ وَجْـهُ الْـخِطَابِ وَاَنَّهٗ عَلٰى حِكَايَةِ مِعْرَاجِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِىْ آخِرِ الصَّلَاةِ الَّتِىْ هِىَ مِعْرَاجُ الْمُؤْمِنِيْنَ.

(المرقاة شرح مشکوة ۲/۳۳۱)

(یـعـنـی په (ایها النبی) کښ د خطاب وجه دا ښکاره شوه چـه دا حکایت دے د واقعے د معراج نه چه الله تعالیٰ په نبی ﷺ بـانـدے (السـلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته) سـلام واچولو نو نبی ﷺ ورسره السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین زیات کړونو دا د معراج د واقعے نه رانقل شو

او په مانځه کښې وینا ئے په مسلمانانو باندے لازم شوه ځکه چه مونځ هم د مؤمنانو معراج دے)۔

نو ملا علی قاری رحمه الله هم ددے شبهے جواب فرمائیلے دے چه دا خطاب مونږ اوتاسو نۀ کوو بلکه دا د الله تعالیٰ خطاب دے چه خپل نبی ته ئے کړیدے او مونږ ئے د عبادت په طور رانقل کوو۔

ooooooo

# صحیح عقلی دلائل
# او د محققینو علماؤ اقوال

(۱) – اول قانون او دلیل واوره ! محدثینو فرمایلی دی چه «یا محمد» آواز کول چرته صحیح حدیث کښې نقل نه شته او کومو روایاتو کښې چه «یامحمد» راغلي دي هغهٔ به یا قول د یهودی وی لکه دا مخکښې بیان شوی دی او یا به قول د منافق وی لکه ذو الخویصرة التمیمی چه «یامحمد» وئیلے وو۔

کما فی المشکوة (۳۰۸/۱) ومسلم (۳٤۰) والنسائی۔

او یا به الله پاك خپل نبی ته په حدیث کښې «یامحمد» وئیلی وی، کما فی حدیث الترمذی والمشکوة (۷۰/۱) عن ابن عباس ومعاذ وایضاً مشکوة (٤۸۹/۲)

او یا به کوم ملائك وئیلی وی کما فی حدیث جبریل فی بعض روایات النسائی (۲) او یا به جاهلانو باندیچیانو دا لفظ وئیلی وی کما فی حدیث انس عند الشیخین.

(مشکوة ۵۱۸/۲).

صحابه کرامو نه څوك صحيح نقل نشي پيش کولے، او ملا علي قاريؒ وائي کوم چه د صحابه کرامو نه نقل دی نو هغهٔ قبل التحريم وو۔

اوګوره مرقات (۵۱/۱) حديث جبرئيل۔

نو کوم کس چه دا الفاظ وائي نو هغه يا يهودی يا منافق يا جاهل دے يا به ځان ته ملائك وائي يا به ځان ته الله وائي (العياذ بالله)۔ د ملا علي قاريؒ عبارت دا دے او د هغه فائده واوره او دا مخکنۍ قاعده هم هغه صراحةً ذکر کړيده۔

دارنګه البراهين القاطعة (۲۰/) او انجاح الحاجة هم راوړے ده (۷/۱): (قَوْلُهٗ وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ: قِيْلَ نَادَاهُ بِاسْمِهٖ اِذِ الْحُرْمَةُ تَخْتَصُّ بِالْاُمَّةِ فِيْ زَمَانِهٖ اَوْ مُطْلَقاً وَهُوَ مَلَكٌ مُعَلِّمٌ وَيُؤَيِّدُهٗ قَوْلُهٗ تَعَالٰى لَا تَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا لِلْاٰدَمِيْنَ فَلَا يَشْمُلُ الْمَلَائِكَةَ اِلَّا بِدَلِيْلٍ وَاَمَّا مَا وَرَدَ فِيْ بَعْضِ الصِّحَاحِ مِنْ نِدَاءِ بَعْضِ الصَّحَابَةِ بِاسْمِهٖ فَذٰلِكَ قَبْلَ التَّحْرِيْمِ الخ)

(يعني دا قول د جبريل چه يا محمد۔ وئيلے شويدی چه

نبی ﷺ تـه ئـے پـه نوم آواز اُوکړو ځکه چه حرام والے ددے آواز د هغـه پـه زمانه کښ یا مطلقاً د امت پورے خاص دے او هـرچه جبریل دے نو هغه خو ملائك دے او ددے تائید دا دے چه الله تـعـالیٰ بندګان منع کړیدی چه دے نبی ته داسے آواز مـه کـوئ څـنګه چه تاسو یو بل ته آوازونه کوئ نو دا حـکـم مـلائکو ته شامل نهٔ دے مګر په دلیل سره (او دلیـل خو نـهٔ دے مـوجود) او د بعض صحابه کرامو نه چه په نوم سره آواز راغـلـے دے نو هغه د حراموالی نه مخکښ زمانه کښ وو) انتهیٰ الترجمة۔

دے عبارت نه دا فائده معلومه شوه چه «یامحمد» وئیـل دا پـه ابتـداء د اسـلام کـښ جائز وو اُوس حرام شوی دی دا د مـلاعـلـی قـاری حنفی قول دے چه دا جاهلان په ملا علی قـاری ډیـرے حوالے ورکوی او حالانکه دا حقه مسئله د هغه نهٔ منی۔

**دویم دلیل** دا دے :

چه کوم شخص چا ته آواز کوی او داسے ورته اُووائی چه اے فـلانـکـی، اے فلانکی ! او روسته خبره نهٔ ذکر کوی نو هغهٔ به څومره خفه شی چه ته زما سره بے ادبی کوے او څه راته

نـهٔ پیش کوے نو څوك چه ((یامحمد)) ((یامحمد)) وائی نو هـغـهٔ د رسـول الله ﷺ ډیـر سخت بی ادبی کونکی دی، او کـهٔ یو سړے وائی چه زهٔ د محمد ﷺ نه مدد غواړم پس د وفـات د هغهٔ نه نو دا په اتفاق د مسلمانانو سره مشرك دے، په دے خبره آیتونه او احادیث واوره:

۱- الله تـعـالیٰ فـرمائی: ﴿ وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَاِنْ فَعَلْتَ فَاِنَّكَ اِذاً مِّنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴾ (یونس١٠٦)

(مهٔ رابله سویٰ د الله نه هغهٔ څوك چه نهٔ فائده درکوی او نـهٔ څـهٔ ضـرر، او کـه مخلوق ته دے آواز اوکړونو تهٔ به دغه وخت کښ د ظالمانو نه شے)

نـو هـر قسـم مـخـلـوق تـه آواز کـول ظـلم دے کلـه چـه ظاهری اسباب ورسره نهٔ وی.

۲- الله فرمائی: ﴿ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُوْنَ ﴾ (سورة الاحقاف آیت پاره۲٦).

(څوك لوئی ګمراه دے د هغهٔ چا نه چه رابلی سویٰ د الله نه هغهٔ چا لره چه هیڅ دعاء ورله نهٔ شی قبلولے او نهٔ ورسره

مدد کولے شی) «من دون الله» لفظ عام دے، رسول الله ﷺ، ملائك، نیکان او بدانو ټولو ته شامل دے، سوچ اُوکړه!۔

٣- الله تعالیٰ فرمائی: ﴿قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَایَنْفَعُنَا وَلَایَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰی اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدَانَا اللّٰهُ﴾

(سورة الانعام آیت ٧٠)

(اُووایه اے نبی! آیا مونږ راوبلو سوی د الله نه هغهٔ څوك چه نهٔ فائده راکولے شی او نهٔ ضرر، مرتد شو (کهٔ دا کار مو اُوکړو) پس د هغے نه چه الله راته هدایت کړے دے)

دے آیت نه معلومه شوه چه سوی د الله نه بل چا ته په غیر د څهٔ ظاهری سبب نه آواز کول د مرتدانو او کافرو کار دے، قرآن کریم دا خبره کړیده۔ زهٔ ئے د ځان نه نهٔ کوم۔

٤- بل آیت اُوګوره

﴿اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَایَسْمَعُوْا دُعَائَکُمْ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَکُمْ وَیَوْمَ الْقِیَامَةِ یَکْفُرُوْنَ بِشِرْکِکُمْ وَلَا یُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِیْرٍ﴾

(سورة الفاطر پ٢٢)

(الله تعالیٰ فرمائی: که چرته دے مخلوق نه تهٔ اُوغواړے نو اول ستا خبره نهٔ اَوری، او کهٔ بالفرض وائے وری نو ستا

دعاء نشي قبلولې (حاجت نشي پوره کولې) او قيامت کښې به ستاسو ددې شرك نه انکار کوي)

دې آيت نه معلومه شوه چه نبي ﷺ يا بل ولي الله ته آواز کول، د استغاثې او مدد دپاره شرك دې۔ دارنګه نور آيتونه ډير زيات دي، قرآن کريم لوئي دليل دې، ليکن ددې جاهلانو په نزد د کتابچو حوالې او د شروح او حواشي حوالې د قرآن نه هم زياتې معتبرې دي۔ والله المستعان۔

دارنګه اُوګوره حديث د سيدنا عبد الله بن عباس رضي الله عنهما چه په هغې کښې دا دي :

(اِذَا سَأَلْتَ فَاسْئَلِ اللّٰهَ وَاِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ الحديث)

(ترمذی ۷۸/۲) وقال حديث حسن صحيح انظر رياض الصالحين ص (٦٥) رقم (٦٣) وصحيح الترمذی للالبانی ۳۰۸/۲) مشكوة (٤٥٣/٢) رقم الحديث (٥٣٠٢)

(عبد الله بن عباسؓ فرمائي : زهٔ د رسول الله ﷺ سره يو ځل په سورلۍ سور وم، نو رسول الله ﷺ راته څهٔ وصيتونه اُوکړل چه يو وصيت دا وو چه سوال کوې نو د الله پاك نه سوال کوهٔ ! او چه مدد غواړې نو صرف د الله نه

مدد غواړه)

دا د رسول الله ﷺ تعلیم دے چه آواز د حاجت غوختلو دپاره صرف الله ته کوه او مدد هم د هغهٔ نه غواړه، او دا تعلیم به ځکه ورکوی چه رسول الله ﷺ الله پاك ﷻ توحید او ایمان رالیږلے دے :

لِيُخْرِجَ الْعِبَادَ مِنْ عِبَادَةِ الْعِبَادِ اِلٰى عِبَادَةِ رَبِّ الْعِبَادِ.

(کما فی حیاة الصحابة)

(چه بندګان د مخلوق د عبادت نه راوباسی او د خالق عبادت والا جوړ شی)

نو دا معلومه شوه چه «یارسول الله» ، او «یامحمد» وئیل د مدد غوختلو دپاره شرك دے او کهٔ یو سړے وائی چه زهٔ «یامحمد» شوقاً ذوقاً وایم لکه بعض جاهلان مفتیان دا قسم فتوے ورکوی نو مونږ وایو چه ددے مثال خو به داسے شی لکه پښتانه وائی : «د خرهٔ مینه لغته وی»

نو ستاسو شوق دا دے چه د الله د عظیم حکم نه خلاف اُوکړئ چه الله فرمائی: «یامحمد» مهٔ وایئ لکه دا خبره مخکښ مفصله بیان شوه نو «یامحمد» د جاهلانو وینا

ده۔

**۳- دریم دلیل :**

دا دے چه هغۀ کسان چه دا مسئله د «یامحمد، یارسول الله» ثابته وی یا غائب ته آواز کول ثابتوی نو دده مقصد څۀ دے ؟ ددے مسئلے نتیجه څۀ ده؟۔

هغۀ دا ده چه د خلقو به د الله د ذات نه یقین کمزورے شی او په مخلوق به ئے یقین پیدا شی چه دوی مالکان د نفع او ضرر دی او دا ثابتول د شرك ثابتول دی نو عاقبت به دا شی چه ډیر خلق به گمراه شی۔

پس د علماؤ د کتابونه اُوگوره چه په هغے کښ د « یارسول الله» او د «یامحمد» او غائب ته آواز کول رد وی۔

۱-اُوگوره البراهین القاطعة فی الرد علی الانوار الساطعة لخلیل احمد محدث سهارنپور تفصیلًا ص (۲۲۰/۲۲۸) سره د جوابونو د دلائلو د دوی نه۔

۲-دارنگه محدث رشید احمد گنگوهی خپله فتاوی رشیدیه (۶۲/۱) کښ لیکلی دی :

**سوال** : یارسول اللہ" دور سے یا نزدیک قبر شریف سے پکارنا جائز ہے یا نہیں؟

**جواب** : جب انبیاء علیہم الصلاۃ والسلام کو علم غیب نہیں تو یارسول اللہ" کہنا بھی ناجائز ہوگا، اگر یہ عقیدہ کر کے کہیں کہ وہ دور سے سنتے ہیں بسبب علم غیب کے تو خود کفر ہے اور جب یہ عقیدہ نہیں تو کفر نہیں مگر کلمۂ کفر مشابہ بکفر ہے الخ۔

د عبارت مطلب دا دے چه یارسول الله ﷺ وئیل پدے عقیده چه هغهٔ عالم الغیب دے نو دا سړے کافر دے او کهٔ دا عقیده نهٔ ساتي نو کلمه مشابه بالکفر ئے اُووئیله۔

۳- دارنګه اُوګوره انجاح الحاجة علی هامش ابن ماجه للشیخ عبد الغنی المجدد الدهلوی ثم المدنی (۱/۷) حاشیه (۸) فی حدیث جبرئیل:

قَوْلُهُ یَا مُحَمَّدُ : لَعَلَّ هٰذَا نَقْلٌ بِالْمَعْنٰی فَاِنَّ النِّدَاءَ بِیَامُحَمَّدُ لَایَجُوْزُ لَهٗ عَلَیْهِ السَّلَامُ قَالَ اللّٰه تَعَالیٰ : لَاتَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بَیْنَکُمْ کَدُعَاءِ بَعْضِکُمْ بَعْضًا، وَقِیْلَ الْخِطَابُ اَیْ خِطَابُ اللّٰهِ مَخْصُوْصٌ بِبَنِیْ آدَمَ لَا بِالْمَلَائِکَةِ وَکَانَ نُزُوْلُ جِبْرِیْلَ لِتَعْلِیْمِ الْاُمَّةِ فَیُنَاسِبُ اَنْ یُنَادِیَ بِمَا یَجُوْزُ لَهَا الخ وَیُؤَیِّدُ الْاَوَّلَ الْحَدِیْثُ الآتِیْ فَاِنَّ فِیْهِ النِّدَاءَ بِیَارَسُوْلَ اللّٰهِ.

(مطلب دا دے چه «یامحمد» وئیل نهٔ دی جائز او کوم حدیث د جبرئیل کښې چه راغلی دی چه جبرئیل «یامحمد» اُووئیلو نو صحیح دا ده چه هغه روایت

بالمعنیٰ دے یعنی جبرئیل اصل کښې یارسول الله وئیلے دے او راویانو بدل کړے په «یارسول الله» سره دلیل پړے دویم حدیث دے په ابن ماجه کښې۔

**٤– دارنګه فتوی دا مام نوویؒ شارح مسلم ده ۔**

(قَوْلُهٗ یَامُحَمَّدُ : قَالَ الْعُلَمَاءُ لَعَلَّ هٰذَا کَانَ قَبْلَ النَّهْيِ عَنْ مُخَاطَبَةِ النَّبِيِّ عَلَیْهِ السَّلَامُ بِاسْمِهٖ قَبْلَ نُزُوْلِ قَوْلِ اللّٰه تَعَالیٰ : لَا تَجْعَلُوْا دُعَاءَ الرَّسُوْلِ بَیْنَکُمْ الآیة، عَلٰی اَحَدِ التَّفْسِیْرَیْنِ اَیْ لَاتَقُوْلُوْا یَامُحَمَّدُ بَلْ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَیَا نَبِيَّ اللّٰهِ وَیَحْتَمِلُ اَنْ یَّکُوْنَ بَعْدَ نُزُوْلِ الآیَةِ وَلَمْ تَبْلُغ الآیَة هٰذَا الْقَائِلِ) (شرح مسلم ۱/ ۳۰)۔

(تهولو علماؤ وئیلی دی چه دا «یامحمد» مخکښې د منع نه وئیل شوے دے، او یا دا چه دے بعض کسانو ته دا آیت نۀ وو رسیدلے۔ مطلب دا چه «یامحمد» منع دے په نزد د تهولو مسلمانانو۔

٥– دارنګه اُوګوره احسن الفتاوی د شیخ رشید احمدؒ (۱/ ۳٦٤) :

(مروجه صلاۃ وسلام مثل یارسول الله یا حبیب الله بدعات کے مجموعه ہے

تفصيلاً)۔

مطلب دا شو چه الصلاة والسلام عليك يارسول الله او يا حبيب الله وئيل په اُوچت آواز سره مخکښې د اذان نه يا روستو دا مجموعه د بدعاتو منکراتو ده۔

دې باره کښې ملاعلي القاري په مرقات (٢/١٦١) کښې ليکي : (فَمَا يَفْعَلُهُ الْمُؤَذِّنُوْنَ الآنَ عَقِبَ الْاَذَانِ مِنَ الْإِعْلَانِ بِالصَّلَاةِ وَالسَّلَامِ مِرَاراً اَصْلُهٗ سُنَّةٌ وَالْكَيْفِيَّةُ بِدْعَةٌ لِاَنَّ رَفْعَ الصَّوْتِ فِى الْمَسْجِدِ وَلَوْ بِالذِّكْرِ فِيْهِ كَرَاهِيَّةٌ وَقَالَ فِى (١٠/١٧١) : بِاَنَّ رَفْعَ الصَّوْتِ فِى الْمَسْجِدِ وَلَوْ بِالذِّكْرِ حَرَامٌ)۔

٥- ملاعلي قاريؒ فرمائي :

«يارسول الله» او «يا حبيب الله» د اذان نه روستو په اُوچت آواز سره وئيل بدعت دې بلکه سنت دا ده چه اللهم صل على محمد الخ به هر شخص ځان سره پټ وائي ځکه چه جهر سره ذکر په مساجدو کښې حرام دې۔

٥- فتح المجيد (١/١٦٥) کښې دي :

(قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ : اِنَّهٗ لَا يُسْتَغَاثُ بِىْ وَاِنَّمَا يُسْتَغَاثُ بِاللّٰهِ) (الطبراني عن عبادة بن الصامت).

البـريـلـويـة د شيـخ احسـان الهـی ظهيـر ص (٩/٨) هـم اُوګوره۔

(استـغـاثـه په نبی سره حرام ده، استغاثه به صرف په الله سره کولے شی)

شيـخ الاسـلام ابـن تيـميـهؒ عـالـم علماء الاعلام په خپله فتـاوی (٣٥٩/١) و (٨١/٢٧) کـښ پـه مـختلف مواضعو کښ ليکی:

(وَمِنْ اَعْظَمِ الشِّرْكِ اَنْ يَّسْتَغِيْثَ الرَّجُلُ بِمَيِّتٍ اَوْ غَائِبٍ كَمَا ذَكَرَهُ السَّائِلُ وَيَسْتَغِيْثُ بِهٖ عِنْدَ الْمَصَائِبِ يَقُوْلُ يَا سَيِّدِیْ فُلَانٌ كَاَنْ يَّطْلُبَ مِنْهُ اِزَالَةَ ضُرِّهٖ اَوْ جَلْبَ نَفْعِهٖ، وَهٰذَا حَالُ النَّصَارٰی فِی الْمَسِيْحِ وَاَحْبَارِهِمْ وَرُهْبَانِهِمْ وَمَعْلُوْمٌ اَنَّ خَيْرَ الْخَلْقِ وَاَكْرَمَهُمْ عَلَی اللّٰهِ نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ ﷺ وَاَعْلَمَ النَّاسِ بِقَدْرِهٖ وَحَقِّهٖ اَصْحَابُهٗ وَلَمْ يَكُوْنُوْا يَفْعَلُوْنَ شَيْئاً مِنْ ذٰلِكَ لَا فِیْ مَغِيْبِهٖ وَلَابَعْدَ مَمَاتِهٖ الخ).

(فرمائی: لوئی شرك دا دے چه سړے مړی ته یا غائب ته آواز اُوکړی د مـصیبت پـه وخت چه اے سیدی فلان مثلاً یارسـول الله یا محمد، یا بابا، یا شیخ عبد القادر جیلانی یا سیـد عـلـی هجویری دا قسم الفاظ استعمال د مشرکانو

عـمل دے او دا د عیسایانو (نصاراؤ) طریقه ده او دا معلومه ده چه صحابه کرامؓ ډیر ښهٔ پیژندونکی وو د رسول الله ﷺ قدر او حقونو لره او هغوی رسول الله ﷺ ته پس د مرګ نه دا قسم آوازونه نهٔ دی کړی)۔

دا د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ د عبارت حاصل دے، اګرکه دا جاهلان شیخ الاسلام نهٔ منی او غلط نسبتونه ورته کوی خلاف کوی د دے قول د الله تعالیٰ نه :

﴿ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ﴾

او دوی ورته ځکه بد ګوری چه د دوی زړونه ئے سیزلی دی او د دوی په ګمراهئ ئے پوره رد کړے او ګمراهی ئے ورله واضحه کړے ده۔

٤ــ څلورم دلیل :

دا دے چه ((یارسول الله)) ((یامحمد)) وئیل به یا دین کښ وی او ددے وئیل به ثواب لری او یا به ثواب نهٔ لری، مکروه او بدعت به وی، کهٔ چرته دین وی او ثواب لری نو تاسو دلیل پیش کړئ د قرآن او سنت نه ځکه هر عبادت لپاره اصل وی په دین کښ نو راوړئ یو دلیل که تاسو رشتینی یئ او یا به بدعت او مکروه وی او د بدعت نه ځان ساتل فرض دی۔

شیخ سرفراز خان صاحب په «اخفاء الذکر» کښې لیکی
(ہاں اگر کوئی شخص یارسول اللہ کے الفاظ سے آنحضرت ﷺ کو حاضر ناظر سمجھ کر یہ پڑھے یا آپ سے مدد مانگے تو البتہ ناجائز ہے)

مفتی الدیار السعودیة علامه عبد العزیز بن عبد الله بن باز په څۀ اشعارو رد کوی چه هغۀ د کویت نه په یوه مجله کښې شائع شوی وو۔

يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَدْرِكْ عَالِمًا يَشْعَلُ الْحَرْبَ وَيُعْلِيْ مِنْ لَظَاهَا
يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَدْرِكْ اُمَّةً فِيْ ظَلَامِ الشَّكِّ قَدْ طَالَ سُرَاهَا
يَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَدْرِكْ اُمَّةً الخ ۔

نو شیخ ابن باز پرے داسے رد کوی :

اَللّٰهُ اَكْبَرُ ! هٰكَذَا وَجَّهَتْ هٰذِهِ الْكَاتِبَةُ نِدَائَهَا وَاسْتِغَاثَتَهَا اِلَى الرَّسُوْلِ ﷺ طَالِبَةً مِنْهُ اِدْرَاكَ الْاُمَّةِ بِتَعْجِيْلِ النَّصْرِ نَاسِيَةً اَوْجَاهِلَةً اَنَّ النَّصْرَ بِيَدِ اللّٰهِ وَحْدَهٗ لَيْسَ ذٰلِكَ بِيَدِ النَّبِيِّ ﷺ وَلَا غَيْرِهٖ مِنَ الْمَخْلُوْقَاتِ كَمَا قَالَ اللّٰهُ سُبْحَانَهٗ فِيْ كِتَابِهِ الْمُبِيْنِ : وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ الآية )

(الله اکبر ! (تعجب دے) دے کاتبے خپل آواز او فریاد پیغمبر ته متوجه کړیدے او د هغه نه غواړی چه امت ته په جلتئ سره مدد ورکړی، نو دا یا ددے خبرے نه جاهله ده

یا تـرے هیـره شـوے ده چه مدد خو صرف او صرف د الله په لاس کښې دے، ذا د نبی علیه السلام او د نورو مخلوقاتو په لاس کښې نهٔ شته لکه څنګه چه الله په خپل کتاب مبین کښې فرمائی : (او نهٔ دے مدد مګر صرف او صرف د الله غالب حکمتونو والا نه دے)آه۔

بیـا هغـه ډیر آیاتونه او احادیث ذکر کړی دی چه د هغې نه تقریباً یوه رساله جوړیږی چه هغه په کتاب (اِقَامَةُ الْبَرَاهِیْنِ عَلٰی حُکْمِ مَنِ اسْتَغَاثَ بِغَیْرِ اللّٰهِ اَوْ صَدَّقَ الْکَهَنَةَ وَالْعَرَّافِیْنَ وَالْمُشَعْوِذِیْن) کښې ذکر دی۔

ددے رسالے حاصل دا دے چه یارسول الله ته غائبانه چغه وهل لوئی شرك دے او دا فتوی د سعودی علماؤ ده۔

په اقامة البراهین (۳۷) کښې یوه بله فتویٰ :

(قَدْ جَاءَ کِتَابٌ مِنْ بَعْضِ الْاِخْوَةِ اِلٰی مُفْتِی الدِّیَارِ السُّعُوْدِیَّةِ وَفِیْهِ : هَلْ یَجُوْزُ اَنْ یَّقُوْلَ الرَّجُلُ یَا اَقْطَابُ یَا اَغْوَاثُ یَا اَسْیَادُ یَا سَبْعَةً خُذُوْهُ، یَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَغِثْنَا وَاَمْثَالُ هٰذِهِ الْاَذْکَارِ الْخَبِیْثَةِ وَهَلْ یَجُوْزُ الصَّلَاةُ خَلْفَ هٰؤُلَاءِ ؟

الجواب : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی مَنْ لَانَبِیَّ بَعْدَهٗ وَعَلٰی آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَمَنِ اهْتَدٰی بِهِمْ اِلٰی یَوْمِ الدِّیْنِ

أَمَّا بَعْدُ : فَإِنَّ اللّٰهَ سُبْحَانَهُ وَتَعَالىٰ خَلَقَ الْخَلْقَ لِيَعْبُدُوْهُ دُوْنَ كُلِّ مَا سِوَاهُ وَلِيَخُصُّوْهُ بِالدُّعَاءِ وَالْاِسْتِغَاثَةِ وَالذَّبْحِ وَالنَّذْرِ وَسَائِرِ الْعِبَادَاتِ وَقَدْ بَعَثَ الرُّسُلَ بِذٰلِكَ وَاَمَرَهُمْ بِهٖ وَبِذٰلِكَ اَنْزَلَ اللّٰهُ الْكُتُبَ السَّمَاوِيَّةَ الَّتِیْ اَعْظَمُهَا الْقُرْآنُ الْكَرِيْمُ بِبَيَانِ ذٰلِكَ وَالدَّعْوَةِ اِلَيْهِ وَتَحْذِيْرِ النَّاسِ مِنَ الشِّرْكِ بِاللّٰهِ وَعِبَادَةِ مَا سِوَاهُ وَهٰذَا هُوَ اَصْلُ الْاُصُوْلِ وَاَسَاسُ الْمِلَّةِ وَالدِّيْنِ وَهُوَ مَعْنٰى شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ لِاَنَّ مَعْنَاهَا لَامَعْبُوْدَ بِحَقٍّ اِلَّا اللّٰهُ فَهِیَ تَنْفِی الْاُلُوْهِيَّةَ وَهِیَ الْعِبَادَةُ عَنْ غَيْرِ اللّٰهِ وَتُثْبِتُ الْعِبَادَةَ لِلّٰهِ وَحْدَهٗ دُوْنَ مَا سِوَاهُ مِنْ سَائِرِ الْمَخْلُوْقِ وَالْاَدِلَّةُ عَلٰی ذٰلِكَ كَثِيْرَةٌ مِنَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ ثُمَّ ذَكَرَهَا مُفَصَّلًا (من ٢٣)

(يو خط د بعض مسلمانانو نه د سعودي مفتي ته راغلو په هغې كښې ئې دا سوال كړے و چه آيا دا جائز دى چه يو سړے داسے اُووائى : اے اقطابو، اے اغواثو، اے سردارانو اے اُووه اولياؤ زما مدد اُوكړئ او اے رسول الله زما فريادرسى اُوكړه۔ او دغه شانو څوك چه دا وائى نو آيا د هغوى پسے روستو مونځ كيږى او كه نهٔ ؟ نو هغوى داسے جواب وركړو چه الله تعالىٰ ټول مخلوقات ددے دپاره پيدا كړيدے چه د خالص د الله تعالىٰ عبادت اُوكړى او صرف او

صرف د هغه نه دعاء اُغواړی او هغه ته فریاد اُوکړی او ذبح
او نذر او منبتته صرف د هغه په نوم اُوکړی غرض هر قسم
عبادت الله تعالیٰ دپاره خالص کړی او پدے کښ مخلوق د
الله تعالیٰ سره شریك نکړی او الله تعالیٰ په همدے خبره
رسولانو دنیا ته رالیږلی دی او هغوی ته ئے پدے باندے
حکم فرمائیلے دے۔ او ددے مسئلے د بیان او د دعوت دپاره
الله تعالیٰ آسمانی کتابونه نازل کړیدی چه په هغوی کښ
لوئی کتاب قرآن کریم دے هغه د شرك کولو نه د الله تعالیٰ
سره او عبادت د غیر الله نه خلق یرولی دی۔ او دا د ټولو
مسائلو بنیادی مسئله ده او د دین اسلام بنیاد په همدے
باندے دے او همدا مقصد د کلمے د توحید دے ځکه چه په
کلمه کښ دوه جزئین دی یو جزء د غیر الله نه د عبادت نفی
کوی او بل جزء کښ د الله تعالیٰ دپاره عبادت ثابتوی او
پدے باندے د قرآن او حدیث نه بیشماره دلائل دی چه هغه
ئے ذکر کړیدی۔ آه)

ددے **فتوے** حاصل دا دے چه عبادت د الله پاك پورے
خاص دے هرقسم مخلوق چه وی هغوی ته غائبانه چغه
وهل شرك دے، شرك څه بنکرے نهٔ لری همدغه شے دے۔

عبد الرحمن بن حسن بن الشيخ محمد بن عبد الوهابؒ په خپل كتاب «بيان المحجة في الرد على اللجة» كښې فرمائي:

قَالَ شَيْخُ الْإِسْلَامِ ابْنُ تَيمِيَّةَ فِي الرَّدِّ عَلَى الْبِكْرِيِّ نَحْنُ نُطَالِبُ هٰؤُلَاءِ الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يَأْتُوا بِالْاَدِلَّةِ عَلٰى اَنْ شَرَعَ لِخَلْقِهٖ اَنْ يَسْأَلُوا مَيِّتاً اَوْ غَائِباً وَاَنْ يَّسْتَغِيْثُوْا بِهٖ سَوَاءً كَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ قَبْرِهٖ اَوْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَ قَبْرِهٖ بَلْ نَقُوْلُ سُؤَّالُ الْمَيِّتِ وَالْغَائِبِ نَبِيًّا كَانَ اَوْ غَيْرَ نَبِيٍّ مِنَ الْمُحَرَّمَاتِ الْمُنْكَرَةِ بِاتِّفَاقِ اَئِمَّةِ الْمُسْلِمِيْنَ لَمْ يَأْمُرُ اللّٰهُ بِهٖ وَلَا رَسُوْلُهٗ وَلَا فَعَلَهٗ اَحَدٌ مِنَ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ لَهُمْ بِاِحْسَانٍ وَلَا اسْتَحَبَّهٗ اَحَدٌ مِنْ اَئِمَّةِ الْمُسْلِمِيْنَ فَاِنَّ اَحَداً مِنْهُمْ مَا كَانَ يَقُوْلُ اِذَا اَنْزَلَهٗ بِهِمْ شِدَّةٌ اَوْ عَرَفَتْ لَهُمْ حَاجَةٌ لِمَيِّتٍ يَاسَيِّدِيْ فُلَانٌ اَنَا فِيْ حَسْبِكَ اَوِ اقْضِ حَاجَتِيْ كَمَا يَقُوْلُ بَعْضُ هٰؤُلَاءِ الْمُشْرِكِيْنَ لِمَنْ يَدْعُوْنَهُمْ مِنَ الْمَوْتٰى وَالْغَائِبِيْنَ وَلَا اَحَدٌ مِنَ الصَّحَابَةِ اسْتَغَاثَ بِالنَّبِيِّ ﷺ بَعْدَ مَوْتِهٖ وَلَا بِغَيْرِهٖ مِنَ الْاَنْبِيَاءِ الخ.

ددې عبارت حاصل دا دے چه ټول امت مسلمه پدې اتفاق دے چه غائب ته يا مړی ته آواز کول نبی وی او که غير نبی وی حرام او ناروا دی او يو مسلمان دا قسم عمل نهٔ

دے کړے پـه صحابه کرامو او تابعين عظامو کښ نو اُوس څـوك چـه د هـغـوى نـه روستـو يو عمل ايجاد کوى نو دا د رسـول الله ﷺ نـه ځان ښـۀ ګـنړى او د صحابـه کرامو او تابعينو نه ځان اُوچت ګنړى۔ والله المستعان۔

دا يـو څـو دلائـل مـا پـه جلتئ سره د علماؤ د کتابونو نه رانقـل کـړى وو، دے بـاره کښ ډير دلائل دى چه هغۀ لوئى لوئى علماؤ ته معلوم دى او د هغوى کتابونه ترے ډك دى، خـصـوصـاً د احاديثو کتابونه نو هغے ته رجوع پکار ده۔ دا رسـالـه خـو صـرف د طـالـبِ انصاف دپاره اُوليکلے شوه او د هـغـۀ جاهلانو د مقابلے دپاره چه هغوى عوام الناس ګمراه کـوى نـو دا رسـالـه هـر مُـلا او امـى تـه په آسانئ سره فائده ورکوى۔

اَسْـئَـلُ اللّٰهَ سُبْـحَـانَـهٗ اَنْ يَّتَـقَـبَّلَهَا مِنِّىْ وَيَنْفَعَ بِهَا الْمُسْلِمِيْنَ آمِيْن۔



# د مبتدعینو د شبهاتو جوابات

**اوله شبهه** : چه حدیث ضریر البصر کښ د« یامحمد» لفظ راغلے دے نو هغهٔ دوی دلیل گرځولے دے او هغهٔ حدیث په ترمذی، ابن ماجه او المستدرك وغیره کښ راغلے دے۔

**جواب** : ددے شبهے جواب دا دے چه دے حدیث کښ د علماؤ دوه قوله دی۔ اول د علامه سهوانیؒ دے چه هغهٔ په صیانة الانسان ص (۱۲۵) کښ فرمائی : دا حدیث ضعیف دے ځکه ددے په سند کښ (ماهان بن عیسٰی) سیء الحفظ دے (وَثَّقَهُ جَمَاعَةٌ وَضَعَّفَهُ آخَرُوْنَ بِسُوْءِ حِفْظِهٖ وَكَثْرَةِ اَوْهَامِهٖ)

دارنګه ابوجعفر المدنی الانصاری المؤذن پکښ مجهول راوی دے، (وَقَالَ عَلِيٌّ : اِنَّهٗ لَايُعْرَفُ رِوَايَةُ شُعْبَةَ عَنْ اَبِیْ جَعْفَرِ الْمَدَنِيّ هٰذَا وَلَا رِوَايَةَ لِاَبِیْ جَعْفَرٍ هٰذَا عَنْ عُمَارَةَ بْنِ خُزَيْمَةَ) ۔

۲- دویم قول : شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ په فتاویٰ (۱/۱۶۷) او شیخ محدث البانیؒ په صحیح ابن ماجه، صحیح الجامع الصغیر، مشکوة المصابیح کښې فرمائی : دا حدیث صحیح دے لیکن ددے نه په مخلوق باندے استغاثه کولو استدلال خطاء دے ځکه پدے کښې خو د ژوندی سړی په دعاء وسیله شوے ده لکه په هغے کښې داسے الفاظ دی :

(اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ یُّعَافِیَنِیْ).

(اے د الله نبی ! د الله نه اُوغواړه چه ما روغ کړی)

(کذا فی اوضح الاشارة فی الرد علی من اجاز الممنوع من الزیارة ص (۲۸۱) ۔

او کلمه د «یامحمد» نه خو قرآن کریم منع کړیده نو د هغے جائز کول پدے حدیث چه ډیر احتمالات لری د قرآن خلاف دے۔

بله وجه دا ده چه دا آواز مخامخ کړے شوے دے نو پدے باندے استدلال کول چه نداء غائب ته جائز ده – دا غلطه خبره ده، کما فعل البلخی۔

علامه عبد السلام خضر الشقیریؒ په السنن

والمبتدعات (٢٦٠) کښې ليکي:
وَحَدِيْثُ الْاَعْمٰى اَللّٰهُمَّ اِنِّىْ اَسْئَلُكَ وَاَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ اَلْحَدِيْثُ صَحِيْحٌ غَرِيْبٌ وَهُوَ تَوَسُّلٌ بِدُعَاءِ النَّبِيِّ ﷺ فَقَدِ اسْتَجَابَ اللّٰهُ دُعَاءَهٗ فَرَدَّ بَصَرَ الضَّرِيْرِ فَهُوَ مُعْجِزَةٌ لِلنَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ عَظِيْمَةٌ)۔

يعنی دے حديث کښې د رسول الله ﷺ معجزه ذکر ده او آوازونه غير الله ته پکښې نشته)۔

او دارنګه په البراهين القاطعة کښې خليل احمدؔ ليکلی دی:

اقول: اس قصہ میں تو خود فخر عالم زندہ اس عالم میں تھے اور آپ ﷺ کے ہی حکم سے یہ عمل ہوا تھا آپ ﷺ کی خدمت میں ہی حاضر تھے الخ ص (۲۲۲)

د عبارت حاصل دا دے چه پدے کښې غائب ته آواز نۀ شته بلکه رسول الله ﷺ مخامخ وو۔ او د هغه په حکم سره دا عمل شوے وو۔ اُوګوره التوسل للمحدث الالبانی۔

او هرچه «يامحمد» دے نو د هغے د وئيلو نه خو مخامخ او غائبانه قرآن کريم کښې منع شوے ده۔ نو دے حديث کښې هيڅ دليل نشته په جواز باندے۔

او دا حديث شيخ محمد طاهرؔ په «البصائر» کښې په

پوره تفصیل سره ضعیف کړیدے هلته ئے اُوګوره
(۱۳۵-۱۴۰)

OOOOOOO

**دویمه شبهه :**

د دوی دا ده چه یو سړے به عثمان ﷺ خوا ته د یو حاجت دپاره راتلو خو هغهٔ به نهٔ پوره کیدو نو عثمان بن حنیف ﷺ ورته دغه دعاء د ضریر البصر اُوخودله نو حاجت ئے پوره شو نو دے نه صراحةً معلومه شوه چه غائب ته آواز جائز دے او دا حدیث طبرانی فی الصغیر، جامع الصغیر، الترغیب والترهیب، مجمع الزوائد ، انجاح الحاجة شرح ابن ماجه (۱۰۰) کښ هم راوړے دے۔

**جواب** : ددے شبهے جواب دا دے چه دا روایت سنداً ضعیف دے، پدے روایت کښ یو راوی دے «روح بن صداح» او هغهٔ ضعیف دے۔

(قَالَ ابْنُ عَدِيٍّ ضَعِيْفٌ عِنْدَ الْجُمْهُوْرِ، وَقَالَ ابْنُ يُوْنُسَ يَرْوِيْ اَحَادِيْثَ مُنْكَرَةً . كَمَا فی التوصل ص (۲۳۷)

۲- دارنګه دا روایت د الفاظ او متن په اعتبار هم خطاء دے ځکه عثمان ﷺ ولے ددے سړی حاجت نهٔ پوره کولو آیا

هغهٔ ظالم وو (کلا وحاشا) او دارنګه عثمان بن حنیف آیا په توسل بالذوات قائل وو؟ هیڅ کله داسې نهٔ ده۔

(انظر التوصل الی حقیقة التوسل ص (٢٣٤ و ٢٣٥)

دارنګه شیخ الاسلام ابن تیمیہؒ په خپله فتاوی کښې فرمائی: دا حدیث ضعیف دے (١/ ٢٧٥/ ٢٦٦)

په اوضح الاشارة کښې لیکی:

(إِنَّ هٰذَا الْحَدِيْثَ مَعْلُوْلٌ بِعِدَّةِ عِلَلٍ كَمَا ضَعَّفَهَا صَاحِبُ صِيَانَةِ الْاِنْسَانِ وَشَيْخُ الْاِسْلَامِ ابْنُ تَيْمِيَّةَ وَذَكَرَ الْعِلَلَ مُفَصَّلَةً (٢٨٥/٢٨٦)

ټولو علماؤ دا حدیث ضعیف ګرځولے دے۔

## دریمه شبهه:

دا ده چه عبد الله بن عمر ﷺ «یارسول الله» «وامحمداه» وئیلے دی کله چه د هغهٔ خپه بوډئ (میړې) شوے وه لکه الادب المفرد د بخاریؒ (٢٥٠) کښې راځی او ابن سنیؒ او نوویؒ په کتاب الاذکار (٢٧١) کښې راوړے دے۔

ددے شبهے جوابونه دا دی: چه دا حدیث په الادب المفرد کښې پدے الفاظو نقل دے:

(حَدَّثَنَا اَبُوْنُعَيْمٍ قَالَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِیْ اِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ

الـرَّحْمٰـنِ بْـنِ سَعْدٍ قَالَ : خَدِرَتْ رِجْلُ ابْنُ عُمَرَ فَقَالَ لَهٗ رَجُلٌ أُذْكُرْ اَحَبَّ النَّاسِ اِلَيْكَ فَقَالَ : مُحَمَّدٌ)۔

د ابـن عـمر ﷺ خپـه بـوډۍ (میـږی) شـوه نو چا ورتـه اُووئیل : چه خپل محبوب رایاد کړه یعنی د خپل محبوب نوم واخـلـه نـو دا تـجربه ده چه د محبوب د نوم د یادولو په وجـه خپـه صـحـیح کیـږی نـو هـغـهٔ د مـحمد ﷺ نوم واخسـتـو نو دے روایت کښ آواز په «یامحمد» سره نشـتـه او نـهٔ مـدد غوختل د غیر الله نه شتـه او نهٔ پکښ نداء غائب تـه شتـه او دا قـسـم روایـت پدے الفاظو امام نوویؒ په کتاب الاذکار (۲۷۱) کښ راوړیدے :

(عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ : خَدِرَتْ رِجْلُ رَجُلٍ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ ابْـنُ عَبَّـاسٍ : اُذْكُرْ اَحَبَّ النَّاسِ اِلَيْكَ فَقَالَ مُحَمَّدٌ ﷺ فَذَهَبَ خَدُرُهٗ)

(د ابن عباس ﷺ پـه مـجلس کښ د یو سړی خپه بوډۍ شـوه نـو ابـن عـباس ﷺ ورتـه اُوفـرمـایل ، تـاتـه چـه څوك مـحبـوب وی هغهٔ رایاد کړه، هغهٔ محمد ﷺ رایاد کړو نـو صحیح شو)

نو پدے روایت کښ هم «یامحمد» نشتـه او نهٔ نداء غائب

ته شته او نۀ ابن عباس ﷺ دا وئیلی دی :

(اِسۡتَغِثۡ بِاَحَبِّ النَّاسِ)

(مدد اوغواړۀ یا آواز اوکړه خپل محبوب ته) ځکه صحابه کرام د شرك دشمنان وو او د شرك دُعاة (داعیان) نۀ وو لکه دا اُوسنی اهل بدعت چه ګمراهی ته دعوت ورکوی۔

لیکن د دوی شبهه په بل روایت د هیثم بن حنش عن ابن عمر کښ ده چه په هغې کښ دا لفظ دے (یامحمد) او هغۀ په الادب المفرد کښ نشته صرف کتاب الاذکار د نوویؔ کښ دے چه منقول دے د ابن السنی ص (٦٠) نه۔

د هغې جوابونه ډیر دی یو دا چه دا نداء شوقیه ده او نداء شوقیه په نزد د بعض علماؤ جائز ده۔

کما فی البراهین القاطعة (٢٢٠)

**دویم جواب** دا دے چه دوه روایته د ابن عمر د کلمې د (یا) نه خالی دی او یو روایت کښ (یا) حرف راغلے دے او هغۀ روایت ضعیف دے سند ئې دا دے :

(حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ خَالِدِ بۡنِ مُحَمَّد بۡنِ الۡبَرۡدَعِيِّ حَدَّثَنَا حَاجِبُ بۡنُ سُلَيۡمَانَ ثَنَا مُحَمَّدُ بۡنُ مُصۡعَبٍ ثَنَا اِسۡرَائِيۡلُ عَنۡ اَبِيۡ

اِسْحَاقَ عَنِ الْهَيْثَمِ بْنِ حَنَشٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ الحديث) پدے سند کښې هيثم بن حنش مجهول راوی راغلے دے۔

دويم محمد بن مصعب دے (قَالَ الْحَافِظُ فِي التَّقْرِيْبِ صَدُوْقٌ كَثِيْرُ الْغَلَطِ وَفِيْ تَهْذِيْبِ التَّهْذِيْبِ عَنِ ابْنِ مَعِيْنٍ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَقَالَ الْبُخَارِيُّ كَانَ ابْنُ مَعِيْنٍ سَيِّءُ الرَّأْيِ فِيْهِ وَقَالَ النَّسَائِيُّ ضَعِيْفٌ وَقَالَ ابْنُ حِبَّان سَاءَ حِفْظُهٗ فَقَالَ يُقَلِّبُ الْاَسَانِيْدَ وَيَرْفَعُ الْمَرَاسِيْلَ لَايَجُوْزُ الْاِحْتِجَاجُ بِهٖ).

او دارنګه په دے روايت کښې حاجب بن سليمان دے۔
(قَالَ الْحَافِظُ فِيْ تَهْذِيْبِ التَّهْذِيْبِ قَالَ مَسْلَمَةُ بْنُ قَاسِمٍ اَحَادِيْثُهٗ مُنْكَرَةٌ وَفِيْ تَقْرِيْبِ التَّهْذِيْبِ صَدُوْقٌ يَهِمُ مِنَ الْعَاشِرَةِ)

دويم سند ابن سنیؒ ددے روايت داسے راوړے دے:
(اَخْبَرَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ حَسَّانَ الصُّوْفِيُّ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ جَعْدٍ ثَنَا ظَهِيْرٌ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَعْدٍ الخ وَفِيْ هٰذَا السَّنَدِ اَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الْجَبَّارِ الصُّوْفِيُّ وَهُوَ وَاِنْ كَانَ ثِقَةً لٰكِنْ هُوَ صَاحِبُ الْحَدِيْثِ الْمُنْكَرِ الَّذِيْ يَرْوِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ اَهْدٰى حَمْلًا لِاَبِيْ جَهْلٍ كَذَا فِيْ لِسَان الميزان (١٥٢/١) انتهى، البصائر من (٨٤/الى ١٨٩) ـ

نو ثابته شوه چه د دوی استدلال په ضعیف یا موضوع یا په تاویلی ماویلی باندے وی، نص د قرآن او سنت نه نشی پیش کولے۔ والحمد لله۔

**څلورمه شبهه :**

نداء د خالد بن الولید :

لکه البدایه والنهایه کښې راځی (٦/ ٣٢٤)

(وَنَادٰی خَالِدٌ شِعَارَ الْمُسْلِمِیْنَ وَکَانَ شِعَارُهُمْ یَوْمَئِذٍ یَا مُحَمَّدَاهُ) ۔

دا د مسلمانانو شعار وو یعنی د شپے نوم ئے دا ایخودے وو۔

**اول جواب** : دا دے چه دا قصه سند نۀ لری، په بے سنده قصو عقیده ثابتول د مسلمان، خصوصاً د عالم کار نۀ دے۔

دویم دا چه پدے روایت کښې نداء نشته بلکه دا نوم دے د شپے پدے کښې استغاثه مطلوب نۀ ده ځکه که استغاثه او فریاد مقصود وے نو داسے به ئے وئیلی وے یا محمد انصرنا) لیکن صحابه کرام والحمد لله پاك وو د شرك د شائبے نه او د هر قسم کلماتِ موهمه بالشرك نه نو ددے نه

استدلال کول د جهلاؤ او د اهل الزیغ طریقه ده همیشه لپاره مشرکین او مبتدعین او دهریه د داسې قسم مجملاتو یې سنده قصونه استدلال کوی او د هغه کتابونو او رسالونه استفاده کوی چه یا مشرك لیکلی وی یا یې سنده کتاب وی، همیشه له دوی نه دلیل د قرآن او د سنت صحیحه غواړه نو دوی به حیران وی او هیڅ جواب به نۀ شی درکولې (الحمد لله) چه د داسې قسم مشرکانو په مقابله کښې الله پاك حق والا پیدا کړل (لِكُلِّ فِرْعَوْنَ مُوسٰی) ما چه دا رساله لیکله نو ما ته ددې مشرکینو ډیرې درسی رسالې ملاؤ شوې چه هغې کښې ئې خالص د شرك ثابتولو کوشش کړې وو نو د نهایت غصې په وجه ما دا یو څو کلمات راجمع کړل چه د مشرکینو زړه پرې اُوسوزی۔

اِنْ اَجْرِیَ اِلَّا عَلَی اللّٰهِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ۔

**پنځمه شبهه :**

دا ده چه حدیث د بلال بن الحارث کښې راځی :

(عَنْ مَالِكِ الدَّارِ قَالَ اَصَابَ النَّاسَ قَحْطٌ فِیْ زَمَنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَجَاءَ بِلَالُ بْنُ الْحَارِثِ اِلٰی قَبْرِ النَّبِیِّ عَلَیْهِ السَّلَامُ وَقَالَ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ اِسْتَسْقِ لِاُمَّتِكَ فَاِنَّهُمْ قَدْ هَلَكُوْا الحدیث)

رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ وَالْبُخَارِيُّ فِي التَّارِيْخِ الْكَبِيْرِ (٣٠٤) وفتح البارى (٤١٣) وابن الاثير فى الكامل (٥٥٦/٢) والاصابة فى (١٦٤/٦) الخ)

(بلال بن الحارث ﷺ راغے قبر د رسول الله ﷺ ته ئے آواز اوکړو یارسول الله ! باران اُوغواړه خپل امت لره نو دے روایت نه معلومیږی چه یارسول الله وئیل جائز دی)۔

ددے جوابونه واوره :

اول دا چه آیا استسقاء به رسول الله ﷺ د مړو نه کوله اوکۀ نۀ مونږ به ئے کاوه، هیچرے د مړو نه استسقاء شریعت جائز نۀ گنړی۔

★ دویم دا چه دے حدیث کښې واقعه د خوب راځی او خوب لره په شریعت کښې څۀ حیثیت نشته۔

★ دریم دا چه ډۀ چه رسول الله ﷺ ته آواز اُوکړو آیا هغۀ ورلره استسقاء اُوکړه؟ نۀ ئے ده کړے۔

دارنګه دے حدیث کښې نور ډیر علل دی چه هغۀ کتاب التوصل الی معرفة التوسل المشروع والممنوع (٢٤٨)ذکر کړی دی۔ هرچه سند ددے روایت دے نو فتح الباری کښې داسے الفاظ راځی (جاء رجل) یو سړے راغے چه

دهغهٔ پته نهٔ لږی چه څوك دے روایت د مجهول لره اعتبار نهٔ شته دارنګه د هغهٔ عمل حجت بالکل نهٔ شی کیدے۔

دویم دا چه کهٔ دا سړے بلال بن الحارث شی نو د هغه په سند کښ سیف بن عمر الضبی الاسدی دے :

(وَيُقَالُ التَّمِيْمِيُّ وَيُقَالُ السَّعْدِيُّ الْكُوْفِيُّ وَقَدْ ذُكِرَ هٰذَا الرَّجُلُ فِيْ مُصَنَّفِ الْفُتُوْحِ وَالرِّدَّةِ مِنَ الْمَجْهُوْلِيْنَ وَقَالَ عَبَّاسُ بْنُ يَحْيٰى ضَعِيْفٌ، وَقَالَ اَبُوْدَاوٗدَ : لَيْسَ بِشَيْءٍ وَقَالَ اَبُوْحَاتِمٍ مَتْرُوْكٌ، وَقَالَ ابْنُ حِبَّانَ مُتَّهَمٌ بِالزَّنْدَقَةِ.)

او سیف بن عمر الضبی ډیر ضعیف بلکه زندیق راوی دے او مجهول هم دے په نزد بعضِ علماؤ نو دا قسم روایت لره هیڅ اعتبار نهٔ شته چه د عقیدے یوه مسئله دِے په داسے غلط او ضعیف یا موضوع روایت باندے ثابته شی (التوصل ۲۵۲)

او تاریخ کبیر د بخاریؒ کښ دا روایت داسے راغلے :

(قَالَ عُمَرُ : يَارَبِّ لَا آلُوْ اِلَّا مَا عَجَزْتُ عَنْهُ۔ قَالَهٗ فِيْ قَحْطٍ)

(اے الله ! زهٔ د قوم ډیر رعایت کوم او کوتاهی نه کوم مګر کوم شی چه زما د وسع نه کیږی نو ته ما په هغے مهٔ رانیسه۔ د قحط په وخت کښ دا خبره کړے وه)

نو دا مبتدعين تاريخ كبير د بخاري هم پيش كوى او حال دا دے چه په هغے كښ د دوى څۀ شبهه نشته۔

انظر البصائر للشيخ محمد طاهر (١٢٨/١٢٩) مفصلاً ميزان الاعتدال۔

**شپږمه شبهه :**

دا ده چه يو روايت كښ «يَا عِبَادَ اللهِ اَعِيْنُوْنِيْ» راغلى دى۔ مطلب دا چه كوم شخص نه په صحراء كښ سورلئ وركه شى يا تره لار خطاء شى نو داسے دِ ے اُووائى چه اے عباد الله ما سره مدد اُوكړئ نو دده سره به مدد اُوشى نو دے روايت كښ غائب ته آواز شوے دے او دا روايت نوویؔ په كتاب الاذكار (٢٠١) كښ راوړے دے۔ مفصلًا۔

ددے شبهے جوابونه دا دى :

(قَالَ فِيْ مَجْمَعِ الزَّوَائِدِ (١٠/١٣٢) فِيْ هٰذَا الْبَابِ ثَلَاثُ اَحَادِيْثَ اثْنَان ضَعِيْفَان اَلاوَّلُ عَنْ عُتْبَةَ بْنِ غَزْوَانَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِذَا اَضَلَّ اَحَدُكُمُ الحديث رواه الطَّبَرَانِيُّ وَرِجَالُهٗ قَدْ وُثِّقُوْا عَلٰى ضُعْفٍ فِيْ بَعْضِهِمْ اِلَّا اَنَّ يَزِيْدَ بْنَ عَلِيٍّ لَمْ يُدْرِكْ عُتْبَةَ) ۔

دا روايت د دوه وجو نه ضعيف دے يو په دے روايت كښ

دوه ضعیف راویان دی۔ دویم دا چه حدیث منقطع دے۔

۲- دویم حدیث : عَنْ اَبِی مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ اِذَا انْفَلَتَتْ دَابَّةُ الحديث) رَوَاهُ اَبُوْيَعْلٰى وَالطَّبَرَانِیُّ وَفِيْهِ مَعْرُوْفُ بْنُ حَسَّانٍ وَهُوَ ضَعِيْفٌ) (دا حدیث هم ضعیف دے، انظر هذا التفصیل فی التبیان (١٤٦)

وَقَالَ الذَّهَبِیُّ قَالَ ابْنُ عَدِیٍّ مَعْرُوْفُ بْنُ حَسَّانٍ مُنْكَرُ الْحَدِيْثِ وَزَادَ ابْنُ حَجَرٍ فِی اللِّسَانِ مَجْهُوْلٌ)۔

او دریم حدیث کښ دا قسم الفاظ نشته بلکه په هغې کښ ذکر د ملائکو شوے دے، د غائب یا د مړی کوم ذکر په کښ نشته۔ نو د داسے قسم ضعیف روایاتو نه شرك ثابتول او یا په هغې استدلال کول د جاهلانو کار دے۔ دا تفصیل په البصائر کښ هم اُوګوره (١٩٠/١٩٢)۔

دارنګه رشید احمد ګنګوهی فرمائی : دے کښ نداء مړو ته نشته بلکه غائب او مړو ته آواز کول شرك دے اُوګوره (١/٨٩/٨٨/٩٠) دارنګه اُوګوره ضعیف الجامع الصغیر للمحدث الالبانی ص (٣٨٣) رقم الحدیث (٤٤٠) و سلسلة الاحادیث الضعیفة والموضوعة (٦٥٥/٦٥٦) تفصیلاً مع الرد علی هؤلاء المشرکین باتم تفصیل واوضح

بیان فانظر ذلك فانه هام جداً جزی اللّٰه الشیخ الالبانی عنا وعن الاسلام !۔

OOOOOOO

**اوومه شبهه :**

دا ده چه کعب بن حمزه په اشعارو کښ «یا محمد» وئیلے دے (یَا مُحَمَّدُ یَا مُحَمَّدُ یَا نَصْرَ اللّٰهِ اِنْزِلْ).

انتهیٰ کذا فی فتوح الشام (١٩٦) للواقدی.

دارنګه په بهنسا جنګ کښ د مسلمانانو دا شعار وو (یَامُحَمَّدُ، یَا مُحَمَّدُ) (یَا نَصْرَ اللّٰهِ اِنْزِلْ).

فتوح الشام (٢١٨/١) للواقدی۔

ددے شبهے **جواب** دا دے چه واقدی مؤرخ دے چه علماؤ د هغه په باره کښ داسے وئیلی دی :

(قَالَ اَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ هُوَ كَذَّابٌ يَقْلِبُ الْاَحَادِيْثَ وَقَالَ ابْنُ مَعِيْنٍ لَيْسَ بِثِقَةٍ وَقَالَ مَرَّةً لَا يُكْتَبُ حَدِيْثُهٗ وَقَالَ الْبُخَارِيُّ وَاَبُوْحَاتِمٍ مَتْرُوْكٌ، وَقَالَ اَبُوْحَاتِمٍ وَالنَّسَائِيُّ : يَضَعُ الْحَدِيْثَ وَقَالَ الدَّارَقُطْنِيُّ فِيْهِ ضُعْفٌ وَقَالَ ابْنُ عَدِيٍّ اَحَادِيْثُهٗ غَيْرُ مَحْفُوْظَةٍ وَالْبَلَاءُ مِنْهُ وَقَالَ ابْنُ الْمَدِيْنِيِّ يَضَعُ الْحَدِيْثَ وَقَالَ اِسْحَاقُ بْنُ الطباعِ : رَاَيْتُ الْوَاقِدِيَّ فِيْ طَرِيْقِ مَكَّةَ يُسِيْءُ

الصَّلَاةَ وَقَالَ ابْنُ رَاهْوِيَهْ هُوَ عِنْدِيْ مِمَّنْ يَضَعُ الْحَدِيْثَ ثُمَّ قَالَ الذَّهَبِيُّ فِي الْمِيْزَانِ بَعْدَ مَا ذَكَرَ الْاَقْوَالَ فِيْهِ وَاسْتَقَرَّ الْاِجْمَاعُ عَلٰى وَهْنِ الْوَاقِدِيِّ۔ ميزان الاعتدال (٦٦٢/٤) الى (٦٦٦). وَقَالَ ابْنُ حَجَرٍ فِيْ تَقْرِيْبِ التَّهْذِيْبِ : اَلْوَاقِدِيُّ مَتْرُوْكٌ مَعَ سَعَةِ عِلْمِهٖ (٣١٢/١)

ددے عبارت حاصل دا دے چه د مذکوره روایاتو نقل کونکی کذاب دروغجن سړے دے۔

دویم جواب دا دے چه حجت صرف په کلام د الله او په احادیثو د رسول الله ﷺ کښې دے په بل کس کښې هیڅ حجت نشته۔ دریم دا چه دے روایاتو کښې د الله نه مدد غوختل دی، د رسول الله ﷺ نه پکښې مدد غوختل نشته نو د جاهلانو استدلال پرے صحیح نهٔ دے۔

**اتمه شبهه:**

**اشعار د نابغة الجعدی :**

دارنګه اشعار د صفية رضی الله عنها۔ دارنګه اشعار د زینب بنت علیؓ دوی پیش کوی چه په بعضو کښې لفظ د یارسول الله وغیره راغلے دے۔

ددے شبهے جوابونه، اول دا چه اشعارو لره دین کښې څه

اعتبار نشته اول به دلیل د قرآن او سنت صحیحه نه راوړے بیا به تائید کښې اقوال پیش کړے او چه تهٔ صرف اقوال د علماؤ دلیل گرځوے نو دا څهٔ دلیل نشی کیدے۔

دویم دا چه د نابغه په اشعارو کښې دا الفاظ دی

| وَيَا قَبْرَ النَّبِيِّ وَصَاحِبَيْهِ | | أَلَا يَا غَوْثَنَا لَوْ تَسْمَعُوْنَا |
|---|---|---|

پدے بیت کښې د قبر نوم اخستل شوے دے او په آخر کښې دا لفظ دے (لو تسمعونا) کچرته تاسو اوریدل کولے شئ اے قبر د رسول الله او اے قبر د ابوبکر او عمر، نو پدے روایت کښې رد دے پدے چه غائب او مړی ته آواز کول بے فائدے دی۔

بله دا چه ددے روایت سند په الاستیعاب د ابن عبد البرّ (۳/٦ ، ۵) په حاشیه د الاصابة) کښې نهٔ دے ذکر کړے نو په سنده قصه دین ثابتول دا هل زیغو کار دے، قرآن او سنت زمونږ او ستاسو د عقیدے دپاره کافی دی، دے باب کښې قصو ته حاجت نشته۔

او په مرثیه د صفیه رضی الله عنها کښې په اشعارو کښې داسے الفاظ نقل دی :

| وَكُنْتَ بِنَا بَرًّا وَلَمْ تَكُ جَافِيًا | اَلَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ كُنْتَ رَجَاءَ نَا |
|---|---|

دا حدیث اولًا ضعیف دے، منقطع دے په مینځ د عروة بن الزبیر او د صفیه کښې ځکه عروه په سنه (۲۹) کښې پیدا شوے دے او صفیه رضی الله عنها د عروه نه نهه کاله مخکښې وفات شوے ده، کما فی التوصل (۳۲۴/۳۳۲)

دویم دا چه دا روایت مجمع الزوائد (۳۹/۹) کښې راوړے دے او هغه د مرثیے (ستاینے) روایت دے پدے کښې نداء غرض نهٔ وی بلکه صرف توجّع او تحزّن (غم او خفګان ښکاره کول) غرض وی،لکه علماء پدے خبره پوهیږی۔

نو پدے استدلال کول هم غلط دی، او هرچه آواز او اشعار د زینب بنت علیؓ دی نو هغه دا دے:

(يَا مُحَمَّدَاهُ، يَا مُحَمَّدَاهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْكَ وَمَلَكُ السَّمَاءِ الخ

البداية والنهاية (۱۹۳/۸)

د هغے جواب دا دے چه زینب یوه زنانه ده د هغے قول په امت باندے څهٔ دلیل نهٔ شی کیدے، بلکه قرآن او حدیث رانیول پکار دی، نو اے مسلمانانو د هر رطب او یابس (لامده او اُوچ) پسے خپل دین مهٔ تابع کوئ۔

دویـم دا چه سند ددے روایت راوړل پکار دی او هغه کوم دے ؟ ځکه چه دین کښ بے سنده خبرو له اعتبار نشته۔

دریـم دا چـه دا خـو مرثیه ده چه د حسین رضی الله عنها پـه بـاره کـښ وئیلے شـوے ده او په مرثیه کښ خطاب کول مـقـصـد نهٔ وی بلکه د ژوندو زړهٔ نرمول مقصد وی، لکه د ابن کثیرؒ په البدایة والنهایة (٨/ ٢١٠) کښ دی۔

نـو پـه اشـعـارو او غیـر مسـنـد اقـوالو باندے خپل دین بـربادول او خپله عقیده او د عوامو مسلمانانو عقیده ګنده کـول نـهٔ دی جـائـز، آیا تاسو دا نهٔ دی اوریدلی چه په باب د عـقـیـده کـښ یقینی دلائلو ته ضرورت دے، او په ظنیاتو او ضعیف روایاتو عقیده نهٔ ثابتیږی۔

بـلـکـه صحیح قول دا دے چه په ضعیف السند حدیث مـرفـوع بـانـدے یـو عـمـل نهٔ شی مشروع کیدے نو پاتے لا مـقـطـوع او ضعیف او یا شعر او بیت او مرثیه باندے خپـل دیـن ثابتول د جُهلاؤ کار دے، هر مسلمان له پکار دی چه د خپـل ایـمـان حفاظت اُوکړی او د مشرکانو او مبتدعینو په غـلـطـو روایاتو او مزخرفو خبرو دوکه نهٔ شی، ځکه د هرے خبرے تپوس به الله پاك زمونږ او تاسو نه کوی، خصوصاً د

ایمان تپوس خو ډیر ضروری دے لکه څرنګ چه ایمان راوړل فرض دی۔

دارنګه د ایمان د جوړیدو او خرابیدو علم هم فرض دے، نو مسلمان بحیثیت مسلمان ډے د کلمات شرکیه او بدعیه نه ځان اُوساتی، دا وجه ده چه رسول الله ﷺ مونږ ددے الفاظو نه منع کړی یو، چه یو انسان اُووائی : (ما شاء الله وشئت) یعنی کله چه د الله خوښه شی او ستا خوښه شی دارنګه (اَنَا فِيْ حَسْبِكَ) (زه تا لره کافی یم) وَمَالِيْ اِلَّا اَنْتَ) (زما نور څوك نشته صرف ته ئے) (وَخَبُثَتْ نَفْسِيْ) (زما نفس خبیث شو) (وَيَا خَيْبَةَ الدَّهْرِ وَرَاعِنَا) (اے نا امیدی د زمانے او راعنا لفظ) ددے الفاظو د وئیلو نه مونږ منع شوی یو، دارنګه د ټولو موهم الفاظو نه منع راغلے ده کما فی رد المحتار والقرطبی (٢/٥٧) والجواب الکافی لابن القیم (١٢٥)

و سبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب الیك وصلی الله علی نبینا محمد وآله وصحبه وسلم تسلیماً کثیراً۔

# خاتمه

ددے رسالے حاصل دا دے چه دے مذکوره الفاظِ شرکیه او بدعیه نه ځان ساتل فرض دی او کوم الفاظ چه مُوهِمْ د شرك وی اګرکه ستا عقیده د شرك نه ده خو بیا هم ځان ساتل ترے پکار دی، بعض د هغه الفاظِ موهمه ؤ نه «یارسول الله» وئیل دی که دا چغه د استغاثے دپاره وی نو بیا شرك دے، او دارنګه کۀ غائبانه وی، او که د رسول الله ﷺ په ژوند کښې مخامخ شوی وی نو بعینهٖ ادب او احترام دے، او پس د مرګ نه د قبر په خوا کښې بهترین درود چه متفق علیه روایاتو کښې نقل دے هغه: «اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلی آل ابراهیم انك حمید مجید، اللهم بارك علی محمد وعلی آل محمد کما بارکت علی ابراهیم وعلی آل ابراهیم انك حمید مجید»۔ (جلاء الافهام)

دا درود وئیل پکار دی او ددے درود نه بل څۀ ته اعراض

کول نقصان دے، او کۀ «السلام علیك یارسول الله» اُووائی د قبر په خوا کښې نو دا د صحابو نه نقل شته لکه موطأ امام مالك کښې د ابن عمر ﷺ روایت دے چه هغۀ به داسے سلام اچولو کله به چه د سفر نه راغے او د رسول الله ﷺ د قبر زیارت به ئے کولو، کما فی مجموعة الفتاوی)

او هر چه کلمه د «یامحمد» ده نو هغۀ په ټولو طریقو سره حرامه ده، کۀ غائبانه وی او که مخامخ وی او که د قبر په خوا کښې وی۔ ځکه هغه شرك دے یا بے ادبی ده، دارنګه نداء غائب ته د مدد دپاره حرامه ده۔ او کۀ مدد دپاره نۀ وی نو موهِم د شرك ده او لغوه ده او ددے نه اجتناب (پرهیز) لازم دے او دا د دین ضروری مسئله ده په ضعیف او منګرت روایاتو نۀ ثابتیږی، او دارنګه په شروحو او حواشیو او په مجلاتو نۀ ثابتیږی، هرمسلمان له د حق اتباع پکار ده د ضد او تعصب نه به الله تعالیٰ ته توبه مونږ ټول اُوباسو۔

❁❁❁❁❁❁❁❁❁

وَسُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ
اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ۔

تمت يوم الاحد ٢٢/صفر المظفر سنه (١٤١٢هجرى)
بعد صلوة العصر
فى جامعة تعليم القرآن والسنة مسجد حمزة
رضى الله عنه بيرون گنج گيٹ بشاور باكستان
بيراع العبد الضعيف "ابومحمد امين الله" والحمد لله رب
العالمين.

❁❁❁❁❁❁❁❁❁❁

# د چرسو، افیونو او نورو نشائی څیزونو حکم


مؤلف

ابو محمد امین الله البشاوری

حفظه الله تعالیٰ

جمع وترتیب

ابوخالد لائق احمد غزنوی



ناشر




بیرون گنج گیٹ منگل مارکیٹ پیښور

